# تزکیه په اسلام کې

په قرآنکریم کې د پېغمبر څلور دندې بیان شوي دي. د هغوی څخه یوه د ځان تزکیه ده (۲:۱۲۹). ددې آیت نه د نفس د تزکیې اهمیت معلومیږي. مؤمنانو ته ضروري ده چې د ځان تزکیې ته ځانګړی مقام ورکړي. همدارنګه داعي او اصلاح کوونکي ته پکار ده چې په خپل کوشش کې تزکیه په ځانګړي اهمیت سره شامله کړي.

د تزکیه معنا پاکونه (purification) ده یعنې د نفسي خواهشاتو او د شیطان د وسوسو څخه ځان ژغورل، د خلکو له خوا نه د ناخوښو تجربو په موقع کې د منفي عکس العمل څخه ځان ژغورل او د هغو عواملو څخه بې اغېزې ژوند تېرول چې انسان د سېده لارې نه اړوي او داسې نور.

په اصل کې الله تعالی انسان په ښه فطرت باندی پیدا کړی دی، خو د دنیا په ژوند کې د خارجي عواملو په وجه په دې صحیح فطرت باندې بیا بیا پرده غوړیږي. انسان ته پکار ده چې دا خارجي عوامل وپېژني او ځان دې ترې وژغوري.

د پېغمبر کار دا دی چې خلک د تزکیې د اصولو څخه خبر کړي، هغه خلکو ته د دې په اړه په مسلسله توګه لارښوونه وکړي. همدارنګه د دې اړخ نه خلکو ته یو عملی مثال جوړ شي.

پېغمبر (ع) په خپل وخت کې د وخت د خلکو سره په مستقیمه توګه د تزکیې دا کار ترسره کړ. د وروسته نسلونو لپاره د پیغمبر (ع) د تزکیې دغه کار په غیر مستقیمه توګه جاري دی. د پېغمبر (ع) د ویناوو او د کړنو پوره ریکارډ د حدیث او سیرت په کتابونو او د

صحابوو په اثارو کې شتون لری. د وروسته نسلونو کار دا دی چې دوی دغه تحریری ریکارډ مطالعه کړي او هدایت واخلی. څوک چې لوستلې شي، هغوی دې په خپله مطالعه کړي او هغه څوک چې لوستلې نه شي، د امت اصلاح کوونکي دې هغوی ته د نصیحت او پند پواسطه د تزکیې تربیه ورکړي.

## د تزکیې حقیقت

د پیغمبر (ع) له دندو څخه یوه دنده هغه ده چې په قرآنکریم کې ورته د تزکیې (۲:۱۲۹) ټکی راغلی دی. هر مؤمن باید د خپل ځان تزکیه وکړي. د تزکیې نه بغیر هغه یو لوړ شخصیت نه شي جوړېدای چې په قرانکریم کې ورته رباني شخصیت ویل شوی دی. په حقیقت کې همدغه تزکیه د یو انسان د جنت ته د داخلېدو سبب ګرځي (۲۰:۷٦).

د تزکیې لغوي معنا نمو یا وده (growth) ده. د دې ودې یو مادي مثال ونه ده. ونه د یو تخم د نمو نتیجه وي. یو تخم د مناسب چاپېریال په پیدا کولو سره غځېږي، تر دې چې یو شنه ونه ترې جوړه شي. انساني تزکیه همدې ته ورته مثال لري، نو له دې کبله تزکیې ته روحاني یا ذهني پراختیا (intellectual development) هم ویل کیږي.

الله تعالی انسان د ډېرو امکاناتو (potentials) سره پیدا کړی دی. د انساني شخصیت دغه امکانات په واقعیت (actual) باندې بدلولو ته تزکیه ویل کیږي، نو لدې کبله دا خبره سمه ده چې د تزکیې مطلب دا دی چې په رباني بنسټونو باندې انساني شخصیت جوړول.

کله چې یو انسان ایمان راوړي، نو په اصل کې هغه د تزکیې سفر شروع کوي، تر دې چې هغه په کلاره کلاره یو مزکیٰ (پاک کړل شوی) انسان یا د ذهن او روح له نظره یو پرمختللی شخصیت (developed personality) جوړ شي. همدغه هغه انسان دی چې په ابدي جنت (eternal paradise) کې به ورته د ننوتلو اجازه ورکول کیږي.

تزکیه د کوم پیچلي شي نوم نه دی. منځګړیتوب ((meditation د تزکیې وسیله نه ده، بلکې د تزکیې وسیله غور او فکر (contemplation) دي. د خپل ځان او کاینات په اړه فکر کول او د دې نه د معرفت ذهني او فکري رزق حاصلول، همدغه هغه عمل (process) دی چې په انسان کې دننه مزکیٰ شخصیت جوړوي. تزکیه یو معلوم حقیقت دی، نه کوم پټ. دغه تزکیه انسان ته په خپل کوشش سره حاصلیږي، د کوم فرض کړل شوي بزرګ پټ فیض سره د دې اړیکه نشته.

## د تزکیې ارزښت

یو روایت د حدیثو په مختلفو کتابونو کې داسی راغلی دی. په صحیح مسلم کې په دې ټکو راغلی دی: أذا دخل أهل الجنة الجنةَ، و أهل النار النارَ، يُجاء بالموت يوم القيامة كأنه كبش أملح، فيُوقف بين الجنة والنار، فيقال: يا أهل الجنة هل تعرفون هذا، فيشرءبون و ينظرون و يقولون نعم، هذا الموت. ثم يقال: يا أهل النار هل تعرفون هذا، فيشرءبون و ينظرون و يقولون نعم، هذا الموت. قال: فيُؤمر به

فيُذ بح، ثم يقال: يا أهل الحنة، خلود فلا موت، و يأهل النار، خلود فلا موت (صحيح مسلم، حديث نمبر: ۲۸۴۹)

يعنې کله چې په قيامت کې جنتيان جنت ته او جهنميان جهنم داخل شي، نو هلته به مرگ راوړل شي. هغه به د سپين پسه په شکل کې وي او د جنت او دوزخ په منځ کې به ودرول شي او بيا به وويل شي چې ای جنتيانو! ايا تاسو دا پېژنئ، د هغه پسه سر به جگې کړي او وبه گوري او وبه وايي چې هو، دا مرگ دی.

پېغمبرَ(ع) وفرمايل چې د دې نه وروسته به جهنميانو ته به وويل شی چې ای جهنميانو! ايا تاسو دا پېژنئ، دوی هم سر به يی جگې کړي او ورته به وگوري او وبه وايي چې هو، دا مرگ دی. پېغمبرَ(ع) وفرمايل چې د دې نه وروسته به امر وشي چې مرگ دې حلال کړل شي. او بيا به وويل شي: ای جنتيانو، تاسو لپاره هميشه والی دی، نور تاسو ته مرگ نشته. او ای دوزخيانو، تاسو ته هم هميشه والی دی، نور تاسو ته مرگ نشته.

تزکيه څه شی دی، د تزکيې مطلب دی د ځان نه هغه مزکیٰ شخصيت (purified personality) جوړول چې د جنت په اوچت چاپيريال کی د اوسيدلو قابل وي. په قيامت کې به مزکیٰ خلک جنت ته او غير مزکیٰ خلک جهنم ته به داخل کړل شي، نو د دې نه وروسته به داسې اعلان وشي چې اوس د مرگ قانون ختم شوی دی، او د تل لپاره به دواړه ډلې په خپل خپل دنيا کی ژوند تېروي.

دا به ډېره سخته شېبه وي. جنتيان به خوشحاله وي چې هغوی ته د تل لپاره د خوشحاليو دنيا حاصله شوه. بل طرف ته به جهنميان

په نه بیانېدونکې افسوس کې مبتلا شي. دغه فکر به د دوی لپاره دایمي عذاب وګرځي چې د ځان تزکیې په نه کولو سره دوی په څومره غټه محرومۍ کې مبتلا شول.

دغه احساس د تزکیې لپاره بې له شکه یوه پیاوړې محرک ده. په هغه وخت کې به د دوی نه دا امید هم لاړ شي چې کېدای شی کله مرګ راشي او مونږ د دې عذاب څخه وژغوري. دا به د جنتیانو لپاره د ابدي خوشحالۍ شېبه وي، خو د جهنمیانو لپاره د ابدي افسوس شېبه.

## جنت د مزکیٰ شخصیت لپاره

د قرانکریم په سورت طه کې د جنت په اړه داسې ویل شوي دي: ذلك جزاُ من تزکیٰ (۷٦ :۲۰) یعنې جنت د هغه چا لپاره دی چې د خپل ځان تزکیه (پاکونه) یې وکړو:

.Paradise is for one who purifies himself

د قرانکریم د دې ایت نه دا معلومیږي چې جنت د هغه چا لپاره دی چې په دې دنیا کې د ځان تزکیه وکړي او د یو مزکیٰ شخصیت په حیث باندې آخرت ته لاړ شي. دغه حقیقت د قرانکریم په مخلفو آیتونو کې بیان شوی دی. جنت ته د داخلېدو پرېکړه د فردی صفت په بنیاد باندې کیږي، نه د ډله ییز تعلق په بنیاد.

جنت د هغه چا لپاره دی چې خپل ځان پاك کړي. پاکول دا دي چې انسان د غفلت ژوند پرېږدي او شعوري ژوند خپل کړي، هغه خپل ځان د هغه څیزونو نه وژغوري کوم چې د حق د لارې نه یې ایساروي، کله چی د مصلحت خنډ مخې ته راشي، نو صرف نظر ترې

وکړي، کله چې د نفس خواهشات یې پورته شي، نو هغه دی لاندې کړي، کله چې د ظلم او لویۍ احساس پکې راشي، نو هغه دی دننه ښخ کړي او داسې نور.

د تزکیې مطلب دی یو څیز د ناموافقو عناصرو څخه پاکول تر څو هغه په موافقه فضا کې خپل فطري کمال ته ورسیږي. د پېغمبر یو مهمه دنده تزکیه ده.

د پېغمبر آخري هڅه دا وي چې داسې انسانان تیار شي چې د هغوی سینې د الله له مینې نه پرته د نور هر مینی نه تش وي، داسې روحیې منځته راشي چې د نفسیاتي پېچلتیا څخه تش وي، داسې خلک پیدا شي چې د کایناتو نه خدایي رزق حاصل کړي کوم رزق چې الله د خپلو مؤمنانو بنده گانو لپاره په کائنات کی ایښی دی.

د جنت اړیکه د تزکیې سره تړلې ده، تزکیه جنت ته د داخلېدو یوازنی شرط دی. د تزکیې نه پرته هیڅکله څوک جنت ته نه شي داخلېدای.

## حدیث د تزکیې وسیله

یو عالم ویلي دي: من کان فی بیته مجموعة من الأحایث، فکأنما فیه نبی یتکلم.

(یعنې د چا په کور کې چې د حدیثو یوه مجموعه وي، گویا د هغه په کور کې په خپله پېغمبر (ع) شتون لری او خبرې کوي). دغه عالم چې کومه خبره کړې ده، هغه صرف د پېغمبر (ع) د احادیثو په اړه نه ده، بلکې په پراخه اعتبار سره گویا د پېغمبر (ع) ناسته پاسته هم

ده.

د پېغمبر (ع) کومې ویناوې چې د حدیث په کتابونو کې راغلي دي، هغه صرف ویناوې نه دي، بلکې د هر وینا خپل شالید (background) وی. یعنې پېغمبر (ع) چې چېرته وه، هلته به یو حالت پیښ شو، د هغې حالت د غوښتنې په مطابق پېغمبر (ع) خلکو ته د نصیحت په شکل وینا وکړه. همدارنګه د پېغمبر (ع) هره وینا د یو شالید پورې تړلې ده. د پېغمبر (ع) هره وینا یو نه یو حالت بیانوي.

که چېرې یو انسان د حدیث په اړه خپل شعور دومره ویښ وساتي چې هغه د حدیث سره د حدیث شالید هم په خپل فکر کې راولي، نو دا ګویا د پېغمبر (ع) سره ناسته پاسته ده. هغه به داسې احساس کوي چې زه یوازې د پیغمبر ویناوی په کتاب کی نه لولم، بلکې د کلام په بین السطور کی (between the lines) د هغه شالید هم په خپل فکر کې تازه کوم. که چیری دغه احساس په انسان کې په شدت سره پیدا شي، نو د حدیثو مطالعه به د دې لپاره د پېغمبر (ع) سره د ناستې پاستې په مانند وي. همدارنګه د هغه اثر به د حدیثو په باره کی په زرګونه چنده زیات شي.

که له دې اړخ نه غور وشي، نو معلومیږي چې د حدیثو مطالعه کوونکی یوازې حدیث نه مطالعه کوي، بلکې هغه ګویا د صحابوو سره یو ځای د پېغمبر (ع) په مجلس کې ناست دی. د حدیثو د مطالعی یوه طریقه تخلیقي (creative) ده او په تخلیقي طریقې سره د پېغمبر (ع) د حدیثو مطالعه کول بې له شکه د تزکیې غټه وسیله

ده.

## تزکیه یو دوامداره عمل

د پېغمبر (ع) اهلیه بي بي عایشې (رض) د پېغمبر (ع) په اړه فرمایلي دي: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يذكر الله على كل أحيانه (صحيح البخاري، كتاب الجنائز) یعنې پېغمبر (ع) به په هره شیبه (occasion) کې الله یادوه. د دې روایت نه د تزکیه یو مسنونه طریقه معلومیږي. د لږ لفظي توپیر سره د دغه روایت مطلب دا دی: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يزكى نفسه على كل أحيانه (پېغمبر (ع) به په هره شیبه کې د ځان تزکیه کوله).

د دې نه معلومه شوه چې تزکیه د کوم خاص وخت د تربیتي کورس نوم نه دی، بلکې تزکیه د یو دوامداره عمل نوم دی. کله چې یو مؤمن حقیقت وومي، نو د شعوري ویښتیا په بنا د هغه داسې حالت کیږی چې هره واقعه او تجربه د ده لپاره د تزکیې د مأخذ ټکی (point of reference) جوړ شي. همدارنګه هغه هره شېبه او هره شپه او ورځ د تزکیې غذا حاصلوي.

د تزکیې دغه عمل تر مرګه جاري وي. لکه څرنګه چې بدني ځواکمنتیا د مسلسل خوراک سره حاصلیږي، همدارنګه تزکیه د یو دوامداره عمل سره حاصلیږي.

په عام ډول داسې باور کیږي چې یو ډول لنډ مهاله تربیتي کورس (training course) د تزکیې وسیله ده، یعنې لکه څرنګه چې په مدرسو کې د یو ټاکلي او محدود کورس په وسیله دیني تعلیم حاصلیږي، همدارنګه تزکیه هم د یو لنډ مهاله ټاکلي کورس په

وسیله حاصلیږي. خو حقیقت دا دی چې دا د تزکیې تصغیر یعنې لږ ګڼل (underestimation) دي.

تزکیه د یو دوامداره ذهني عمل په واسطه حاصلیږي، نه د کوم لنډ مهال کورس په وسیله. د تزکیې لپاره یو ویښ ذهن ( awakened mind) پکار دی. تزکیه یو تدریجي عمل دی، هغه د کوم فزیکي تمرین (exercise) نتیجه نه ده.

## تزکیه د رغونې عمل

تزکیه یو دوامداره عمل دی او هر سهار او ماښام جاري وي. د دې په اړه په یو حدیث کې یو مثال داسې راغلی دی: أن هذا القلوب تصدأ كما يصدأ الحديد أذا أصابه الماء. قيل: يا رسول الله، وما جلأوها. قال: كثرة ذكر الموت، و تلاوة القرآن (البيهقى، بحواله مشكاة المصابيح، رقم الحديث: (٦٨ : ٢١) یعنې زړونه زنګ نیسي، لکه څنګه چې اوسپنه زنګ نیسي کله چې اوبه پرې واچول شي. پوښتنه وشوه چې ای د الله رسوله د دې د پاکولو طریقه څه ده. پېغمبر (ع) وفرمایل چې د مرګ ډېر یادول او د قرآنکریم مطالعه کول.

د پېغمبر (ع) په دې حدیث کې د تمثیل په وسیله یو نفسیاتي حقیقت بیان شوی دی، هغه دا چې په ټولینز ژوند کې انسان داسې حالاتو سره بیا بیا مخامخ کیږي چې په هغه کی منفي احساسات پیدا کوي. مثلاً قهر، کرکه، تاوتریخوالی، غچ او داسې نور. انسان باید دغه احساسات سمدستي ختم کړي. که داسې ونکړی، نو دغه منفي احساسات به د انسان د ذهن دایمي برخه وګرځي، آن تر دې

چې لرې کول یې ناشوني شي.

د انسان د دماغو دوه لویې برخې دي - شعور (conscious mind) او لا شعور (unconscious mind). د طبیعي نظام په مطابق یو منفي احساس لمړی د دماغو شعوري برخې ته داخلیږي. که چېرې دا احساس ژر له ذهن څخه ونه وېستل شي، نو په کلاره کلاره دغه احساس د دماغو لا شعوري برخې ته رسیږي چې بیا د هغه ځای نه ویستل یې ډېر گران شي. انسان باید هره شېبه د خپل ځان نگران وي، هغه باید هره شېبه منفي احساس له پراسس (process) نه تېر کړي او په مثبت احساس یې بدل کړي، یعنې هغه خپل اغیزمن شوی ذهن (conditioned mind) په رغول شوي ذهن (de-conditioning mind) بدل کړي. هغه دی خپل ذهن پاک کړي او ککړتیا ترې ختمه کړي. د دې تطهیر (پاکونې) وسیلې د مرگ بیا بیا یادول او د قرآنکریم په رڼا کې د ژوند تېرولو په انجام باندې غور او فکر کول دي.

## تزکیه: روحاني خوراك

بدن خوراک ته ضرورت لري. کله چې دا خوراک بدن ته ورسیږي، نو بدن صحتمند کیږي. همدارنگه روح هم خوراک ته ضرورت لري. کله چې دا خوراک روح ته ورسیږي، نو روح صحتمند کیږي. همدغه کار ته د ځان تزکیه ویل کیږي او همدغه صحتمند روح ته مصفی او مزکی روح ویل کیږي.

د قرآنکریم له نظره د روح دغه خوراک تفکیر (فکر کول) (۳: ۱۹۱) دی. د انسان په چاپېریال کې هر وخت ځینی پېښې رامنځته کیږي.

ټولنیزې، تاریخي، کایناتي او په هر سطحه باندې پېښې را مینځته کیږي. د دې پېښو په اړه فکر کول او د دې څخه عبرت او نصیحت اخیستل، همدغه د روح خوراک دی.
ځوک چې خپل شعور ته دومره پرمختیا ورکړي، چې په هره پېښه کې دې ته خدایي کرشمې (نښې) ښکاره شې، او د الله د یادولو وسیله جوړه شي، ګویا دغه انسان د خپل روح د خوراک لپاره خدایي دسترخوان حاصل کړ. دا روح به د دې دسترخوان څخه د صحتمندۍ خوراک حاصلوي، تر دې چې هغه د خپل رب سره وګوري.
د تزکیې مهمه وسیله دا ده چې انسان په ځان کې د عبرت اخیستلو مزاج ویښ کړي. عبرت اخیستنه ګویا د تزکیې ځمکه ده. همدغه هغه ځمکه ده چېرته چې د تزکیې فصل پکښې زرغون کېدای شي. په بل کوم ځای کې د تزکیې فصل کرل داسې مثال لري لکه په کلکه تیږه یا غر کې د یوې ونې د کرلو کوشش کول.
د تزکیې وسیله د رب رزق دی، نه د کوم پیر رزق. تزکیه د هغه عمل نتیجه ده چې د خدای او بنده تر منځ د نفسیاتي تعلق په واسطه نېغ په نېغه قایمه وي، تزکیه د کومې واسطې په وسیله نه حاصلیږي. تزکیه د خپل حقیقت له اعتباره یو خدایي ورکړه ده، نه کومه انساني ورکړه.
تزکیه هغه نعمت دی چې انسان ته نېغ په نېغه د الله له طرف نه حاصلیږي. د کوم انسان په واسطه چې کومه تزکیه حاصله شي، هغه بل څه کیدای شي، خو تزکیه نه.

## په عبادت کې اجتهاد نشته

یو عالم د یو مشهور صوفي خانقا ته ورغی. هغه هلته وکتل چې خلک په لوړ غږ په ذکر کولو او متصوفانه اعمالو کې بوخت دي. دې عالم هغوی ته وویل چې په حدیث کې راغلي دي: من أحدث فی أمرنا هذا ما لیس منه فهو رد (صحیح البخاری، رقم الحدیث: ۲٦۹۷)

یعنې څوک چې زموږ په دین کې داسې نوې خبرې راوباسي، چې په دین کې نه وي، نو هغه رد دي. عالم وویل چې ستاسو دا رواج شوي متصوفانه اعمال د پېغمبر (ع) او دصحابوو په وخت کې نه وو, نو دا په دین کې د نوښت (innovation) درجه لري. هغه بزرگ د عالم په ځواب کښی وویل چې په حدیث کې أحدث فی الأمر (په دین کې بدعت) منع دی. په دې کې احداث للأمر (د دین لپاره بدعت) منع نه دی او د تصوف دا عملونه د أحداث للأمر دین لپاره د بدعت حیثیت لري.

د حدیث دا تفسیر غیر علمي تفسیر دی. د حدیث څخه دا معنا نه راوځي. په حدیث کې دغه الفاظ راغلي دي چې: ما لیس منه (چې په هغه کې نه وي)، یعنې پېغمبر (ع) چې کوم دین موږ ته پرېښی دی په هغه کې نه وي.

په دې حالت کې اصل مسئله د فی یا لام په تورو (preposition) کې نه ده، بلکې اصل خبره دا ده چې پېغمبر (ع) چې کوم دین موږ ته راوړی دی، په هغه کې اضافه شوې ده که نه. دا یو ثابت شوی

حقيقت دی چې د پېغمبر (ع) په رواړل شوي دين کې په لوړ غږ سره ذکر نشته، نو کله چی د پېغمبر (ع) په راوړل شوي دين کې دا شتون ونلری، نو د فی او لام په وسيله په دين کې څه اضافه کول يوازې يو بدعتي جسارت دی. د دغسې تورو په وسيله په دين کې اضافه د منلو وړ نه ده.

د علماو په دې باندې اتفاق دی چې په عباداتو کې قياس نشته (لا قياس في العبادات) يعنې په عبادتي کارونو کې صرف نقل دی، په دې کې هيڅ اجتهاد نشته. په عبادتي کارونو کې استدلال يوازې په معلوم دليل پواسطه کېدای شي، نه د کومو لفظي تورو پواسطه. د تورو پواسطه اجتهاد کول ناپوهي ده او د دين له نظره د نه منلو جسارت.

## تزکيه هر وخت

په عام ډول داسې فکر کيږي چې تزکيه يو لنډ مهاله کورس دی يا کوم اذکار او يا اوراد دی په خاص وخت کې وويل شی، خو دا د تزکيې غير فطري طريقه ده او هيڅ کوم يو شي په يو لنډ مهاله طريقه باندی نه شي حاصليدای.

حقيقت دا دی لکه څرنگه چې انسان هر وخت ساه اخلی د ساه اخستلو کوم لنډ مهاله طريقه نشته، نو تزکيه هم يو دوامداره عمل دی. حقيقي تزکيه هماغه ده چې هر وخت جاري وي. د مثال په ډول د يو فارسي شاعر شعر دی چې: زما غريب په قبر باندې نه کومه شمع شته او نه کوم گل، نو ځکه زما په قبر نه پتنگ نڅا کوي او نه بلبل اوازونه کوي.

بر مزار ما غريبان، نی چراغی، نه گلی نی پر پروانه رقصد، نی صدايی بلبلی

دغه شعر تاسو ته يادوي چې شاعر په څومره لويه هېره کې مبتلا دی. هغه دا سوچ کوي چې زما د مرگ نه وروسته به زما په قبر باندي نه کومه شمع وي او نه کوم گل، نو ځکه زما قبر ته نه پتنگ راځي او نه بلبله. خو د انسان اصلي مسله دا ده چې د مرگ نه وروسته انسان يوې بلې دنيا ته ځي، چې د هغه ځای غوښتنې د دې دنيا د غوښتنو نه مختلفې دي، د هغه ځای کاميابۍ لپاره د دی دنيا نه مختلف يو بل اهليت (ability) پکار دی چې په هغه دنيا کې د هغه په کار راتله. نور دا چې په هغې دنيا کې بيا د تيارۍ موقعه نشته. په بله دنيا کې صرف د دې دنيا د اعمالو نتيجه موندل کيږي، نه دا چې نور اعمال کول.

د دې فکر نتيجه به دا وي چې هغه شعر چې د مشاعرې يو برخه وه،هغه د انسان ژوند لپاره يو زلزله شي. هغه به د دې په لټه کې وي چې د ځان نه داسې شخصيت جوړ کړي چې د مرگ نه وروسته ورته پکار شي، چې په آخرت کې د ده د کاميابۍ سبب وگرځي. دغه فکر انسان دې ته هڅوي چې د مرگ نه وروسته حالاتو په اړه فکر وکړي، نه دا چې د مرگ نه وروسته به د دې د قبر حالت څه وي.

## د خطا نه وروسته محاسبه

د تزکيې يو لويه ذريعه محاسبه (introspection) ده او محاسبې سره د انسان ذهن ويښيږي، په شخصيت کې پارونه پيدا کيږي. په دې کې دننه د خپل ځان د اصلاح انگيزه (incentive) ويښيږی. همدارنگه محاسبه انسان ذهني او روحاني پرمختگ طرف ته بوځي.

د مثال په ډول یو کس ستا په اړه داسې څه وویل چې ته پرې خوابدی شوې. ستا احساسات اوچتیږي او تا هم ورته منفي عکس العمل وښووده، خو وروسته پښېمانه (repetance) شوې. تا د خپل چلند بیا کتنه وکړه. تا فکر وکړ چې زه دارنګه په خپل ځان کې یو منفي شخصیت جوړوم. دغه منفي شخصیت د مرګ نه وروسته زما د تباهۍ سبب ګرځی او دغه منفي شخصیت زما د جنت د داخلېدو لپاره خنډ جوړېدای شي.

تا فکر وکړ چې د قرآن په مطابق د جنتیانو کلتور د امن او مینې کلتور دی. هلته به هغه خلک مېشتیږي چې په خپلو کې د امن او مینه سره د ژوند تېرولو صلاحیت ولری. که چیری په داسی حالت کې ما په ځان کې داسې شخصیت جوړ کړ چې زغم (tolerance) پکې نه وي، قهرجن کیدونکی وي، د دوستانه چلند ( friendly behavior) صلاحیت پکښي نه پیدا کیږی، داسې کس جنت ته د داخلېدو وړ نه دی، هغه به د ابدي خوشحالۍ او کامیابۍ څخه محرومه وي. دغه فکر به ستا لپاره یو تعمیري چاودنه جوړه شي. ته به د خپل ځان په باره کښی اندیښمن شې او په تا کې به د ځان د اصلاح کولو شدیده جذبه پیدا شي.

د ځان د محاسبې دغه مزاج د تزکیې لویه وسیله ده. تزکیه تل د داخلي فکر سره حاصلږي، نه د کوم خارجي طبیعي کار په واسطه. تزکیه هغه عمل دی چې انسان د خپل ځان مزکی (تزکیه کوونکی) او زده کوونکی او هم د ځان ښوونکی وي.

## د زړه پر بنسټ که د دماغو پر بنسټ

د قرآنکریم د آل عمران سورت آخري رکوع ولولئ په دی رکوع کی اولو الباب (عقل خاوندان) ته په خطاب کې ویل شوي دي چې د خپل عقل په استعمال سره په آسمان او ځمکه (کاینات) کې غور او فکر وکړئ. په دې کې به تاسو د الله تعالی نښې وګورئ، د دې په ذریعه به تاسو خپل رب وپېژنئ، تاسو به د الله د تخلیقي پلان څخه خبر شئ، د دې په ذریعه به تاسو جنت او جهنم ومومئ او تاسو به د پېغبر په اهمیت پوه شئ. بالاخره هر هغه څه چې په مستقیم یا غیر مستقیم ډول د تزکیې سره اړیکه لري، دغه ټول یې په دې رکوع کې د کایناتي تفکیر سره تړلي دي. یا په بله اصطلاح د قرآنکریم تزکیه د عقل پر بنسټ ده، نه د زړه په بنسټ. نو په دې توګه د قلب (زړه) ټکی په ادبي معنا استعمال شوی دی، نه په ساینسي معنا.

په وروسته زمانه کې د صوفیانو د اغیز په وجه خلکو کې تزکیه د زړه پر بنسټ رواج ومونده او د دې تصور پر اساس داسې وانګیرل شوه چې زړه د ټولو خدایي حقیقتونو خزانه ده او د مراقبې (meditation) په ذریعې دې خزانی ته رسېږئ، نو تاسو ته به تزکیه حاصله شي. خو د زړه پر بنسټ (heart-based) تزکیه د قرآنکریم څخه نه ده اخیستل شوې، بلکې د تاریخ څخه اخیستل شوې ده. په لرغونې زمانې کښې په خلکو کې روحانیت د زړه پر بنسټ (heart-based spirituality) رواج شو، نو همدې په اثر د مضاهات په ډول (۹:۳۰) خلکو دا په اسلام کې شامل کړ.

**نویو ساسینسي علومو دا ثابته کړه چې اسلامي تزکیه د دماغو په بنسټ ژوندۍ کېدای شي او نویو ساینسي څېړنو دا هم ثابته کړه چې زړه یوازې د وینې د دوران (circulation of blood) لپاره دی او زړه یوازې وینه پمپ (pump) کوي. زړه د فکر کولو صلاحیت نه لري. د فکر کولو صلاحیت یوازې په دماغو کې شته. د انسان ټول کارونه د فکر په کولو سره منځته راځي او د دې نه تزکیه هم استثناء نه ده. تزکیه هم د دماغو په وسیله حاصلیږي، نه د زړه په وسیله. زړه ته توجه کول دومره بې بنیاده دي، څومره چې د تزکیې د حاصلولو لپاره نوکانو او وېښتایو ته توجه کول.**

## د لارښود اړتیا

**د تزکیې اصل وسیله دا ده چې انسان په قرآنکریم باندې غور وکړي، هغه حدیث مطالعه کړي او د پېغمبر (ع) د اصحابو د ژوند څخه لارښوونه حاصله کړي. دا د تزکیې اصلي سرچینه ده او تل به وي. د دې نه پرته د تزکیې د حاصلولو یو عملي شرط هم شتون لري او هغه دا چې د خپل عصر یو لارښود او مرشد پیدا کړې او د هغه د علم او تجربو څخه ګټه واخلې. کله چې یو انسان ته یو مرشد پیدا شي، نو باید د کوم شرط نه بغیر هغه خپل مرشد وګڼې. مرشد په مشروط ډول منل د تزکیې په حاصلولو کې یو خنډ دی، نه کومه مرسته.**

**کله چې یو انسان دا ووایي فلانۍ کس مې بې له شرطه خپل مرشد ومانه، نو د دې مطلب ړوند مقلد جوړېدل نه دي، د دې مطلب به دا وي چې د شعوري پرمختیا په نتیجه کې د دوو انسانانو فکرونه (wavelength) یو شول. دا ذهني همغږي ده، نه ذهني تقلید.**

اصل دا دی چې په ورته کارونو کې اکثريت نه وي، نو په دې وجه کله چې دوه انسانان حق ته ورسېږي، نو په طبيعي ډول د دواړو په منځ کې ذهني همغږي پيدا کيږي نو دواړه يو بل ته فکري غبرگوني (intellectual twin) شي.

د تزکيې د حاصلولو لپاره يو لارښود او مرشد ضروري دی، خو د لارښود اهميت عملي دی، نه عقيدوي. د مرشد اهميت په اصل کې د الله د لارې پر بنسټ دی. د الله تعالی دغه لاره د الزخرف په يو آيت کې داسې بيان کړای شوې ده: ورفعنا بعضهم فوق بعض درجات ليتخذ بعضهم بعضا سخريا (۴۳: ۳۲).

يعنې موږ يو ته په بل باندې اوچتوالی ورکړی دی، د دې لپاره چې يو د بل نه کار واخلي.

د دې آيت مطلب دا دی چې د الله تعالی دا طريقه نه ده چې هر چاته د رهبرۍ صفات ورکړي، بلکې د الله تعالی طريقه دا ده چې هغه يو کس رهبر جوړوي او د نورو څخه غوښتل کيږي چې د دغه رهبر پيروي وکړي. د الله تعالی دا طريقه د ژوند طبيعي نظام دی.

د مرشد معامله هم د الله تعالی د دی سنت په مطابق دی. الله تعالی د خاص انتظام په ذريعه مرشد راوچتوي. نورو خلکو ته لازمه ده چې دا وپېژني او د دې نه په استفادې سره د تزکيې مقصد حاصل کړي. څوک چې داسې ونه کړي، گويا هغه د طبيعت په امتحان کې ناکام شو.

د مرشد معامله کوم پټ معامله نه دي، بلکې يو معلوم عقلی معامله دی. د غور او فکر په واسطه هغه پېژندل کېدای شي. د مرشد څخه

چې کومه فیض حاصلیږي هغه کومه پټه فیض نه وي، بلکې دا هغه شی دی چې ورته تربیتي استفاده ویل کیږي. مرشد یو ژوندی لاربښود وي، نه کوم پټ مقدس شخصیت.

## د تزکیې لپاره د اړیکې ارزښت

د تزکیې لپاره ملګرتیا (companionship) یوه مرستیاله وسیله ده. په لرغونې زمانه کې د ملګرتیا وسیله یوازې یوه وه، او هغه مخامخ لیدنه کول و. اوسنۍ زمانه د اړیکو (communication) زمانه ده. په دې عصر کې دا شونې شوی ده که چیری یو کس لرې ژوند کوی نو هغه د خپل مزکی او مرشد له تعلیماتو څخه ګټه پورته کولای شی.

د دې اړیکو وسیلې لیک، انټرنیټ، ټیلي فون او داسې نور دي. د دې یوه وسیله د لرې نه مشوره (tele counseling) هم ده. که چیری یو کس په حقیقي معنا سره تزکیه غواړي، نو دغه اسباب به دغه انسان لپاره د ناستې پاستې بدل وګرځي.

د همدې نویو اسبابو څخه یو هم چاپي مطبوعه (printing press) ده. د چاپي مطبوعې پواسطه دا ممکنه شوه چې میاشتنۍ یا نوری مجلې څخه د تزکیې مواد حاصل کړل شي. د یوې موضوع چاپ شوي کتابونه بیا بیا مطالعه کیداې شي. د دې طریقې اهمیت د قرآنکریم نه هم معلومیږي. لکه څنګه چې ارشاد دی: علم بالقلم. (۹٦: ۴) یعنې د قلم پواسطه د لیکل شویو کتابونو نه دین اخیستل.

له یوې اړخ نه د مطالعې اهمیت د ناستې پاستې نه هم ډېر دی. په ناسته پاسته کې یو انسان د خپل مرشد نه یوه خبره یو ځل اوري، خو د کتاب په ذریعه بیا بیا مطالعه کولای شي، په دې کې بیا بیا

غور او فکر کېدای شي، هغه په دی باندی نورو سره مذاکره (exchange) کوي، دا یو داسې ګټه ده چې صرف د کتابونو څخه تر لاسه کېدای شي.

د تزکیې لپاره اړیکه ډېره ضروري ده، یعنې د خپل مرشد نه په دوامداره توګه ګټه اخیستل، خپلې ستونزې مرشد سره شریکول او هغه نه لارښوونه تر لاسه کول. دغه اړیکه د نژدې ملاقات نه او هم د مواصلاتو په ذریعه کیدای شي. دغه اړیکه باید دوامداره وي تر څو ګټه تر لاسه شي. د لږ وخت لپاره اړیکه ساتلو نه تزکیه نه حاصلیږي.

## د واسطې نه بغیر

په شعوري توګه یا په غیر شعوري توګه خلک داسې فکر کوي چې د تزکیې لپاره یو پټه واسطه ضروري ده. لکه د اسلافو واسطه، د مشرانو واسطه، د شیخانو واسطه، د بزرګانو واسطه، د ولیانو واسطه او داسې نورې. د واسطې په دې پټ تصور کې شیخ په خپل ذات کی مطلوب ګرځول کیږي، خو د لارښود په تصور کې اصل مقصد الله وي او د لارښود حیثیت صرف ذریعه وي. د واسطې دغه تصور بلکل بې بنسټه دی. تزکیه د واسطې نه بغیر د الله سره د تعلق په ذریعه حاصلیږي. د دې لپار ه د چا د واسطې ضرورت نشته.

رینښتونې تزکیه تل د الله تعالی په توفیق باندې حاصلیږي او د الله توفیق ته د کومې واسطې ضرورت نشته. د الله توفیق د الله تعالی هر بنده ته نېغ په نېغه رسیږي. د دې شرط صرف دا دی چې انسان باید په صحیح معنا د تزکیې غوښتونکی شي.

د قرآنکريم په سورة البقرة کې داسې راغلي دي چې: و أذا سألک عبادى عنى فأنى قريب، اجيب دعوة الداع أذا دعان، فليستجيبو لى وليؤمنو بى، لعلهم يرشدون. (۱۸٦ :۲).

يعنې کله چې زما بنده له تا نه زما په اړه پوښتنه وکړي، نو (ورته ووايه چې) زه نژدې يم او کله چې غږ کوونکی ما ته غږ وکړي، نو زه هغه ته ځواب ورکوم. نو زما بنده ګان دې زما امر ومني او پر ما دې ايمان راوړي، تر څو هغوی لاره پيدا کړي.

د قرآنکريم په دې آيت کې د "قريب" لغت استعمال شوی دی. د دې نه معلوميږي چې د تزکيې د حاصلولو لپاره الله ته نژدې کېدل ضروري دي، نه کومې واسطې ته. څوک چې دخپل ځان تزکيه غواړي، نو هغه دې بايد خپل ذهن ويښ کړي او الله ته دې د نژدې کېدلو کوشش وکړي.

د دې د حاصلولو لپاره کومې واسطې ته اړتيا نشته. تزکيه يا خو به د الله سره نېغ په نېغه تعلق سره حاصليږي، يا بيخي حاصليږي نه. حقيقت دا دی چې د واسطې تصور د تزکيې په حاصلولو کې يو خنډ دی. کله چې الله انسان ته د حبل الوريد يعنې شا رګ (۱٦ :۵۰) نه هم نژدې وی، نو د نژدی کيدلو لپاره د واسطې څه ضرورت دی. د واسطې تصور د پټ تعلق په عقيده باندې قايم وي، خو د مرشد تصور په شعوري تعلق باندې قايم وي.

## د تزکيې نه وړاندې

د تزکيې اصل محرک اړتيا (destitution) ده. کوم انسان چې څومره ډېر د خپلو اړتياوو نه خبريږي، هغومره به د تزکيې طرف ته

مایلیږي. داسې کس په فطري توګه د خپلو اړتیاوو د پوره کولو لپاره لاره لټوي او د دې نتیجه تزکیه ده.
د دې انکشاف شروع د خپل ځان نه کیږي. د ټولو نه مخکې انسان په شعوري توګه خپل موجودیت (existence) کشف کوي. دغه انکشاف په انسان کې دا کنجکاوي (curiosity) پیدا کوي چې زه چا پیدا کړی یم. په همدې توګه هغه خپل خالق مومی. د دې په نتیجه کې په هغه کې د الله تعالی لپاره د ډېر لوئي احساس پیدا کیږي.
بیا هغه داسې فکر کوي چې زه په پوره ډول یو اړ موجود یم. زه په خپل قوت سره خپل یو ضرورت هم نه شم پوره کولی. خو بیا هم زما د ټولو ضرورتونو اسباب د مخکې نه شتون لری لکه ځمکه، اوبه، هوا اکسیجن، رڼا، خواړه او نور ډېر شیان چې د ژوند ملاتړ سېستم ( life support system) ورته ویل کیږي. دا ټول ماته د یو طرفه نعمت په توګه راکړل شوي دي. د دې انکشاف نه وروسته هغه په دې باندې د پوهېدو کوشش کوي چې د دې ټولو نعمتونو ورکوونکی (giver) څوک دی. په همدې توګه هغه خپل رب مومی او د دې انکشاف په نتیجه کې د خپل رب سره ډېره مینه پیدا کیږي.
په همدې توګه د انسان لټون دې سوال ته رسیږي چې زما هدف (goal) څه دی. بیا هغه پوهیږي چې په دې دنیا کې زه خپل هدف ته نشم رسیدای. دغه انکشاف دغه انسان د جنت غوښتونکی جوړوي، چېرته چې هغه خپل هدف تر لاسه کولای شي او هغه ټولې غوښتنې یې پوره کېدای شي.
همدارنګه کله چې دغه انسان فکر کوي، نو دا کشفوي چې دې ته د

خپل ژوند د تېرولو لپاره یوې کره لارښوونې ته اړتیا ده. بیا هغه د ټولو هڅو سره سره خپل ځان ته لارښوونه نه شي پیدا کولی. هغه د دې انکشاف نه وروسته د نورې څېړنې په نتیجه کې دې حقیقت ته رسیږي چې د کره لارښوونې یوازنۍ ذریعه پېغمبر (prophet) دی. نو بیا هغه په پوره زړه سره پېغمبر د خپل ځان لارښود جوړوي.

د دې انکشافاتو څخه وروسته په فطري ډول په انسان کې تواضع (modesty) پیدا کیږي. هغه بیا د خالق په عظمتونو کې ورک شي. د الله تخلیقي نظام دې ته په دوامداره توګه د الله د یادولو ذریعه وګرځي. جنت د ده لپاره د هر څه نه مهم هدف وګرځي. هغه پېغمبر خپل پوره لارښود وګڼي. دا ټولې هغه عارفانه تجربې دي چې مجموعي نوم یې تزکیه دی.

## تزکیه او محاسبه

تزکیه کوم یو ځلي عمل ندی، یعنې داسې نه ده چې څوک یو ځل کوم کورس وکړي، نو هغه د تل لپاره مزکی انسان جوړ شو. حقیقت دا دی چې تزکیه یو دومداره عمل دی. دغه عمل (process) به د انسان په ټول ژوند کې جاري وي، د مرګ نه مخکې هغه نه ختمیږي.

تزکیه یو ځان احتسابي عمل دی. په دې عمل کې انسان باید د خپل ځان کتونکی شي. څوک چې د تزکیې غوښتونکی وي، هغه باید هر شیبه د خپلو خبرو او عملونو نګراني وکړي، هغه په ډېر جدیت سره بیا بیا د خپل ځان کتنه وکړي. د محاسبې عمل یوازې په هغه کس کې جاري وی، په چا کې چې د پښیمانتیا (repentance) او محاسبې

(introspection) صلاحیت وي.

دا د امتحان دنیا ده. د دې دنیا خالق دا دنیا داسې پیدا کړې ده چې انسان هر شیبه د امتحان په حالت کې وي، هغه بیا بیا د نفسي غوښتنو څخه اغیزمن کیږي، دشیطان وسوسې او لمسونه دا په غیر مطلوب شیانو کې راګېروي، د چاپیریال د اغیز په وجه هغه د غلطو شیایو ښکار کیږي او داسې نور. دغه ټول شیان د تزکیې ضد دي.

انسان باید دومره حساسه وي چې په هره شیبه کی ویښ وی، هغه په هر شیبه کښې د ځان په پاکونې کې لګیا وي، هغه د هر ککړ شیانو څخه ځان پاک کړي. همدغه تزکیه ده. په دې ډول د ځان سره د محاسبې نه پرته څوک د مزکی شخیت (purified personality) درجه نشي حاصلولی. د ځان سره د محاسبې نه ذهني پراختیا (intellectual development) حاصلیږي او ذهني پراختیا د دې ښکارندوی ده چې په انسان کې د تزکیې عمل بې له کومه خنډه جاري وی.

## تزکیه او تواضع

د فصل لپاره مناسبه ځمکه پکار ده. فصل په حاصلخیزه ځمکه کې زرغونیږي. په شاړه ځمکه کې هیڅ کله فصل نه زرغونیږي. همدارنګه د تزکیې لپاره هم مناسبه ځمکه پکار ده او تواضع (modesty) د تزکیې لپاره مناسبه ځمکه ده. په چا کې چې د تواضع صفت وي، هغه په اسانۍ سره تزکیه حاصلولی شي. د دې برعکس کبر (arrogance) د تزکیې لپاره نا مناسبه ځمکه ده. په چا کې چې د کبر مزاج وي، هغه به کله هم تزکیه حاصله نه کړي.

د دې سبب دا دی چې تواضع په انسان کې د کمۍ احساس پیدا کوي. د متواضع انسان نفسیات داسې وي چې زه باید نور هغه څه حاصل کړم، چې په ما کې نشته. د دې احساس نتیجه به دا وي چې کله دې مخې ته حق راشي، بې له کومې احتیاط نه (reservation) هغه طرف ته منډه کوي. هغه د دې ښه کتنه کوي. هغه ډېر زر پوهیږي چې حق د دی د کمي لپاره جبران دی. هغه حق خپل څیز ګڼي او قبلوي یې.

همدغه صفت د تزکیې روح دی. د دې برعکس د متکبر انسان نفسیات دا وي چې ما سره هر څه د مخکې نه شتون لري. ما ته د څه شي د حاصلولو ضرورت نشته. د دې نفسیاتو په بنا هغه هیڅ کوم خارجي شي د اخیستلو لپاره تیار نه وي. هغه د اصلاح کوونکې خبره په اسانۍ سره ردوي. د دغه انسان دغه مزاج د تزکیې په حاصلولو کې د ده لپاره خنډ جوړیږي.

حقیقت دا دی چې تزکیه یو دوامداره عمل دی. تزکیه په هغه چا کې جاري کېدای شي چې تواضع په کې وي. د تواضع مزاج په انسان کې د قبلولو مزاج پیدا کوي. داسې انسان د نفسیاتي پیچدګۍ (complex) څخه آزاد وی او څوک چې د نفسیاتي پیچدګۍ نه خلاص وي، هغه په کامیابۍ سره تزکیه حاصلولی شي.

## مسنونه اذکار

د حدیثو په کتابونو کې راغلي دي چې پېغمبر (ع) به اکثر وخت کې ځینې کلمې تکرارولې، چې ورته اذکار او دعاګانې ویل کیږي. دغه کلمې په مسنونه اذکارو یا مسنونه دعاګانو مشهوره دي. په عام ډول

داسې فکر کيږي چې دغه مسنونه کلمې د تزکيې لويې ذريعې دي چې انسان دا ياد کړي او په مختلفو وختونو کې يې د ځان سره تکرار کړي.

د مسنونه اذکارو دغه تصور يو ناقص تصور دی. مسنونه اذکار په اصل کې مسنونه کيفيات دي، نه په ساده معنا مسنونې کلمې. حقيقت دا دی چې پېغمبر (ع) د خپل لوړ معرفت په بنا باندي د خدايي کيفياتو نه به پوره و. دهغه دا داخلي حالت په مختلفو وختونو کې د هغه (ع) د خولې څخه راوتلې.

نن سبا چې خلک د حديث په کتابونو کې څه لولي، دوی صرف د پېغمبر (ع) د کلمو نه واقف کيږی، هغوی د پېغمبر (ع) د کيفياتو څخه نه خبريږي. په دې اساس هغوی دغه کلمې اصل وګڼلې. خو کيفيات نه ځکه چې هغه په کتاب کې نشته. د مسنونو اذکارو دا تصور دا د مسنونو اذکارو کم ګڼل دي، د مسنونو اذکارو پوره پېژندنه نه ده.

د حقيقت له اعتباره د مسنونو اذکارو مطلب دا دی چې انسان خپل شعور ويښ کړي، هغه په دوامداره توګه د تفکيري عمل په ذريعې سره په خپل ځان کې داسې شخصيت جوړ کړي چې په خدايي کيفياتو کې ژوند کوونکې وي. دا ګويا د مسنونو اذکارو نه وړاندې سنت دي. انسان ته پکار ده چې د مسنونو اذکارو نه وړاندې په خپل ځان کې سنت ژوندي کړي، د دې نه وروسته د دې د خولې نه چی کومې کلمې وځي، هغه به د ده لپاره مسنون اذکار وي. د داسی خدايي شخصيت د جوړولو نه پرته مسنون اذکار تکرارول صرف د

کلمو تکرارول دي، نه په حقیقي معنا په مسنونو اذکارو عمل کول. خلک په شعوري ډول یا په غیر شعوري ډول داسې فکر کوي چې مسنونه اذکار مقدسې کلمې دي، په دې کلمو کې کوم پټ خاصیت پټ شوی دی، خو دا خبره سمه نه ده. حقیقت دا دی چې مسنونه کلمې د مسنونه کیفیاتو ښکارندوی دي، نه صرف د مسنونه کلمو.

## تزکیه او دعا

دعا څه ده، دعا د هغه کیفیت لفظي اظهار نوم دی چې یو طرف ته د خپل عبدیت او بل طرف ته د خدای د ربوبیت د موندلو نه وروسته په انسان کې پیدا کیږي. د مسنونه دعاګانې معامله هم د دې نه مختلفې نه دي. مسنونه دعا په عامه معنا صرف کلمې نه دي. مسنونه دعا د خپل حقیقت له اعتباره یوه انکشافي دعا ده. یو خدایي انکشاف چې کله د کلمو سره یوځای شي، نو همدغې ته مسنون دعا یا انکشافي دعا ویل کیږي.

په یو حدیث قدسي کې راغلي دي چې: أنا عند ظن عبدی بی، فلیظن بی خیر ما أحب (ذخیرة الحفاظ لابن القیسرانی ۲۷۹۳/ ۵) یعنې زه د خپل بنده ګمان سره یم، نو هغه ته پکار ده چې زما په اړه ښه ګمان وکړي. دا ګمان څه دی، په اصل کې د خدای د صفتونو څخه د کوم صفت موندل دي، چې انسان ته دا موقعه ورکوي چې د الله په اړه ښه فکر وکړي او د الله نه د خیر غوښتنه وکړي.

د مثال په ډول په قرآنکریم کې راغلي دي چې: و اتکم من کل ماسألتموه (۱۴: ۳۴) دغه آیت بنده ته د دعا لپاره د اخذ ټکی ( point of reference) ورکوي چې د دې په حوالې هغه د خدای د رحمت

غوښتنه (invoke) وکړای شي. هغه دا ووايي چې خدايه زه د دنيا د اړتياوو نه خبر هم نه وم چې تا نه د هغه غوښتنه مې کړاې وای. تا زما د ټولو غوښتنو دنيوي انتظام کړی. د آخرت په اړه زه له تا بيا بيا سوال کوم، اوس زما دې سوال ته مهمه درجه ورکړه او په آخرت کې هم زما د اړتياوو د بشپړولو انتظام وکړه.

دا ډول دعاګانې تل د يو نفسياتي طوفان نه وروسته د انسان د خولې نه راوځي. د دې طوفان بل نوم تزکيه دی. تزکيه او دعا يو د بل لپاره لازم او ملزوم دي، چېرته چې تزکيه وي، نو هلته به دعا هم وي او چېرته چې دعا وي، نو هلته به تزکيه د مخکې موجوده وي. د تزکيې نه پرته دعا نشته او د دعا نه پرته تزکيه.

## د تزکيې ظاهري بڼه

د تزکيې کوم ظاهري شکل نشته. که چېرې د تزکيې ظاهري شکل وای، نو انسان به هغه پوره کړی وای او په شعوري ډول يا په غير شعوري ډول هغه به دا فکر کاوه چې ګواکې خپله تزکيه يې پوره کړه او په همدې ډول هغه کی د قناعت (contentment) مزاج پيدا کيږی، خو په دی معامله کی د قناعت مزاج د تزکيی لپاره د قاتل حيثيت لری. د تزکيې لپاره ضروري ده چې په انسان کې د بې قناعتۍ (حرص) (discontentment) احساس ومونډل شي. د بې قناعتۍ احساس تزکيه په دوامداره توګه ساتي، خو قناعت د تزکيې محرک له منځه وړي.

د تزکيې ژور تعلق د عباداتو له ټاکل شوي نظام سره دی. تزکيه او اسلامي عبادات دواړه يو د بل لپاره لازم او ملزوم دي. دواړه د يو او

بل څخه نشي بېلېدای. څوک هم داسې نشي ویلای چې زما تزکیه پوره شوه، نور ما ته د عبادت کولو ضرورت نشته.

خو د دې مطلب دا نه دی چې د ظاهري عباداتو د کولو نه د تزکیې مقصد حاصل شو. داسې فکر کول یوه غیر طبیعي خبره ده. صحیح دا ده چې عبادات د تزکیې د روح ظاهری ظهور دی، هغه د خپل حقیقت له اعتباره د تزکیې وسیله نه ده. که چېرې په چا کې د تزکیې حقیقي روح پیدا شي، نو هغه به خامخا د خدای عبادت کوونکی جوړ شي.

عبادات او تزکیه یو د بل نه نشي بېلېدای، نو ټوله توجه د تزکیې روح ته ورکول پکار دي، نه صرف د ظاهري عباداتو شکل ته. دا سمه ده چې د عباداتو نه پرته د تزکیې دعوه کول د درغو دعوه ده، خو دا هم سمه ده چې عبادات په چا کې په اتوماتیک ډول تزکیه نه شي پیدا کولی.

## ضمیر د تزکیې لارښود

په انسان کې دننه یو فاکلته (faculty) ده چې ضمیر (conscience) ورته ویل کیږي. دغه ضمیر یو خدایي ښوونکی دی. د انسان لپاره د تزکیې د لارښوونې (purification guide) کار کوي. ضمیر هره شیبه په پټه خوله انسان ته وایي چې داسې کوه او داسې مه کوه، دا د تزکیې لپاره ښه کار دی او دا د تزکیې لپاره ناوړه کار دی، دغه کار پاک شخصیت جوړوي او دغه کار ناوړه شخصیت جوړوي.

خو تجربه وایي چې د اکثره خلکو انجام داسې وي چې د هغوی د تزکیې لپاره ضمیر نه وي پکار شوی. د دې سبب څه دی. د دې سبب دا دی چې هر چا سره د ضمیر د فاکلتې خلاف یوه بله فاکلته

هم شته. او هغه نفس (ego) دی. انسان اکثره د نفس او شیطان د اثر لاندې راځي. نفس او شیطان ضمیر خپل کار ته نه پرېږدي. ضمیر په پټه خوله غږ کوي، خو نفس (ego) د هغه اواز لاندې کوي او هغه بې اثره کوي.

د تزکیې غوښتونکی باید د دې حقیقت نه خبر وي. هغه خپل فکري قوت ویښ کړي، هغه هره شیبه باید خپل نفس لاندې وساتي. نفس د ځان لاندې کولو سره ضمیر خپل طبیعي ونډه شروع کوي او د تزکیې عمل بې له کومه خنډه جاري وي.

د نفس لاندې کول ډېر ضروري دي، خو دا کار بل څوک نشي کولای. هر څوک باید دا په خپله وکړي او کله چې د ده نفس راپورته شي، سمدلاسه د پیاوړې ارادې په واسطه (will power) خپل نفس لاندې کړي.

## د تزکیې طریقه

ځینې خلکو د تزکیې مختلفې طریقې بیان کړي دي او د تزکیی د طریقې یو فهرست یې هم جوړ کړی دی، خو په حقیقت کې د تزکیې د طریقو کوم فهرست نشته. که څوک څومره اوږد فهرست هم جوړ کړي، هغه به یو جامع فهرست نه وي. هیڅ کوم فهرست د تزکیې د طریقو احاطه نشي کولای. د یو اوږد ترین فهرست نه پس به داسی یو اجزاوې هم پاتی شی چې د تجربو نه وروسته به دا ثابته شی چی دا یو نیمګړی فهرست وه.

اصل دا دی چې د تزکیې تعلق د فهرست سره نه دی، بلکې د انسان د ارادې سره دی. که چېرې څوک په واقعیت سره د تزکیې په

اړه جدي وي او په صادقانه ډول خپله تزکیه کول غواړي، نو هغه به ضرور د تزکیې په حاصلولو کې کامیاب شي، خو که چېرې څوک په دې اړه جدي نه وي او د تزکیې د حاصلولو لپاره حریص نه وي، نو هیڅ کومه لیکنه یا وینا به د دې د تزکیې د حاصلولو لپاره کافي نه شي.

د انسان یو عجیبه صفت دا دی چې د خپلې غلطۍ لپاره جواز (justification) لټوي. هغه د خپلې هرې غلطۍ صحیح ثابتولو لپاره ښایسته جملې استعمالوي. په دې حالت کې هیڅ کوم اصلاح کوونکی د هغه تزکیه نشي کولای. د تزکیې د حاصلولو لپاره ضروري ده چې انسان د ځان په اړه شعوري پریکړه وکړي، د هغه دا پرکړه باید دومره محکمه وي، چې په هر حال کې په دې ولاړ وي او په دې اړه هیڅ کوم عذر (excuse) د ځان لپاره عذر ونه ګرځوي.

په تزکیه کې مهم شی اراده ده. دا اراده باید دومره پیاوړې وي چې هیڅ کوم خنډ هغه له دې نه لرې نه کړي او هیڅ کومه اندیښنه د دې اراده کمزورې نه کړي. په دې اړه په ځان هیڅ ډول فشار قبول نه کړي او هغه دا وواېي چې په هر عملي یا نفسیاتي قیمت سره به زه تزکیه حاصلوم.

## د تزکیې اغېزمنه طریقه

د تزکیې یو طریقه دا ده چې په لنډ (abstract) ډول ځینې اصول مقرر کړل شي، هغه ولیکل شي او خلکو ته د لوستلو لپاره ورکړل شي. دا هم د تزکیې یو طریقه کېدای شي، خو د تزکیې ډېره اغېزمنه طریقه دا ده چې تزکیه د رامنځته شوي حالت سره وتړل

(relate) شي. د دوهمې طريقې يو صورت دا دی چې د تزکيې لپاره يو مزکی (تزکيه کوونکی) موجود وي. دوهم صورت يې دا دی چې انسان خپل شعور دومره پراخه کړي چې په خپله هره تجربه او مشاهده کې د ځان تزکيه وکړي او هغه د خپل ذهن برخه وګرځوي.

حضرت ابوذر (رض) يو صحابي دی. هغه وايي چې کله به پېغمبر (ع) يو مرغۍ هم وکتله، نو د معرفت کومه خبره به يې ترې وېستله. (وما يقلب طائر جناحيه فى السمآء الا ذکر لنا منه علما. اطبقات لابن سعد، رقم الحديث: ۲۳۵٤). دا د رامنځته شوي حالت په حواله د تزکيې تعليم ورکولو يو مثال دی.

د تزکيې کومه لنډه طريقه نشته. حقيقت دا دی چې لنډه طريقه د تزکيې اغېزمنه طريقه نشي کېدای. د تزکيې اغېزمنه طريقه دا ده چې انسان خپل ځان دومره باشعوره کړي چې په هغه کې د توسم (۷۵ :۱۵) صفت پيدا شي. هغه راپيښ شوی حالت د تزکيې سره وتړي او د هغه نه خدايي درس واخلي. د تزکيې مواد په ورځنۍ تجرباتو کې وی. ورځنيو تجربو ته د تزکيې له نظره کتل زده کړئ. د دې نه وروسته به هره تجربه او مشاهده د تزکيې د حاصلولو ذريعه جوړه شي.

## د تزکيې وسيله

د تزکيې وسيله څه ده. په دوديز ډول ځينې شيان د تزکيې د حاصلولو وسيلې ګڼل کيږي – نوافل، تلاوت، مسنونه اذکار، مراقبه، صحبت، د بزرګانو پېښې او داسې نور. د دې فکر مطلب تزکيه يو ټاکل کورس يا کتاب (manual) په شان ګڼل دي، خو حقيقت دا دی

چې د تزکیې کوم ټاکلی کورس نشته. تزکیه یو ژوندۍ پېښه ده او په ژندي عمل سره په حقیقي ډول حاصلېدای شي.

د تزکیې د مقصد د حاصلولو اصل ذریعه دا ده چې انسان خدایي خبرو کې غور او فکر وکړي، هغه خپل فکر متحرک کړي، هغه په دوامداره غور او فکر سره په هر ظاهر کې د هغه باطن ومومي. همدغه موندنه د تزکیه خوښونکې غذا ده. د مثال په ډول تا یوه مرغۍ وکتله او تا ته دا حدیث درياد شو چې د جنتیانو زړه به د مرغۍ په شان وي. (افئدتهم مثل افئده الطیر).

د دې نه وروسته تا هم د خپل ځان په اړه فکر وکړ چې آیا زما زړه هم د مرغۍ پشان دی، آیا زه هم د مرغۍ پشان د منفي فکر نه تش یم، آیا زه د مرغۍ پشان د حرص نه پاک یم، آیا زه د مرغۍ پشان بې ضرره (harmless) یم، آیا زه هم دمرغۍ پشان د طبیعت د قانون پیروي کوم. همدغه فکر د تزکیې اصل روح دی. د دې ډول احتسابي فکر نه پرته د چا تزکیه نشي کېدای.

تزکیه د خپل حقیقت له اعتباره د ځان د تعمیر عمل دی. په تزکیه کې انسان د خپل ځان مزکی او ښوونکی جوړیږي. د کوم بل چا صحبت یا تبلیغ په خپل ذات کی د چا لپاره اغېزمن نشي کېدای. بل څوک تا ته ابتدایي لارښوونه کولای شي، خو د دې لارښوونې سرته رسول ستا کار دی. د تزکیی په عمل کې که چیری د بل چا یو سلنه برخه وي، نو ستا نهه نوي سلنه برخه وي.

## تزکیه ذهني پراختیا

د تزکیې اصل معنا پاکونه (purification) ده. خو په دې کې یو بل

مفهوم هم شامل شوی دی او هغه غتېدل یا نمو ده. له دې نظره دا ویل به صحیح وي چې د تزکیې مراد هغه څه دي کوم چې ذهني (intellectual development) یا روحاني پراختیا ورته ویل کیږي.

ذهن کوم جامد شی نه دی، هغه یو وده کوونکی شی دی. هغه د ونې پشان په مسلسل ډول وده کوي. همدغه عمل ته په قرآنکریم کې ازدیاد ایمان (۴ :۴۸) ویل شوي دي. د ازدیاد ایمان نه مراد شعور دی او د ازدیاد شعور دوهم نوم ذهني پراختیا ده. حقیقي ایمان هغه دی چې د رکود (stagnation) ښکار نشي. کوم چې د یقین او ایمان بالله پر اساس په مسلسل ډول پراخیږي.

دا تزکیه او شعوري اضافه څرنګه کیږي. د دې ذریعه غور او فکر (contemplation) دی. دا غور او فکر په خپله د ځان په اړه یو دوامداره عمل دی – په قرآنکریم او حدیث کې غور او فکر، د پېغمبر په سیرت کې غور او فکر، د صحابوو په ژوند کی غور او فکر، په نورو انساني موضوعګانو کې غور او فکر، په کایناتو کې غور او فکر، لنډه دا چې د ذرې نه نیولې تر لمره پورې په هر څه کې غور او فکر کول. د دې نه پرته د جدي خبرو په دوران کې غور او فکر.

د دې غور او فکر په جریان کښې چې په ذهن کې نوي نوي خیالونه راځي، د معلومو خبرو نوې نوې څرګندونې په ذهن کې راځي، د پېښو او حقایقو نوی نوی اړخونه په ذهن کې راځي او داسې نور.

چا ته چې ریښتنې ایمان حاصل وي، د هغه حال دا وي چې هره مطالعه او مشاهده د دې لپاره د خدایي انکشاف ذریعه جوړه شي او هره تجربه د دې لپاره خدای ته د نږدې کېدو ذریعه جوړه شي. که د

دې ایمان په شروع کې یو تخم وي، نو په دې ډول غځېدو سره ترې یوه ونه جوړه شي. د دغه فکري او روحاني عمل اسلامي نوم تزکیه دی - ایمان که چېرې په اسلام کې د داخلېدو عنوان وي، نو تزکیه په ایمان کې د پراخېدو عنوان دی.

## تزکیه او علم

د تزکیې لپاره یو لاره دا ده چې د کمال خاوند صحبت حاصل شي، ځکه چې د کمال خاوند یو نظر د انسان د بدلولو لپاره کافي دی، خو دغه لاره د قرآنکریم او حدیث څخه ثابته نه ده. د قرآنکریم او حدیث له نظره د تزکیې مقصد د انسان د خپل غور او فکر سره حاصلیږي. که په انسان کې صحیح مزاج وي او د کتابونو او د طبیعت مطالعه وکړي، نو هغه به داسی معنی واخلې چی د هغه د شخصیت تزکیه کوونکی وی.

د قرآنکریم د فاطر په سورت کې د غرونو د ذکر نه وروسته دا آیت راغلی دی: أنما یخشی اللّٰه من عباده العلمأ (۲۸ :۳۵) په دې آیت کې ویل شوي چې د غرونو علم او د طبیعت د پېښو علم په انسان کې د الله وېره پیدا کوي. یعنې د وېرې سرچینه علم (learning) دی. په کوم انسان کی چی څومره ډیر علم وی هغومره د الله د تخلیقي حکمتونو څخه خبریږي او همدارنگه په معرفت کې یې اضافه کیږي.

تزکیه انسان ته په خپل علم سره حاصلیږي، نه د باکمال فرضي نظر او توجه سره.

مطالعه په انسان کې د فکر کولو صلاحیت ډېروي. مطالعه انسان د دې قابل جوړوي چې په ډېر ژور ډول سره د شیانو نه د معرفت غذا

حاصله کړي. د مثال په ډول هر انسان له هوا څخه تنفس کوي. هر چا ته ممکنه ده چې پدې کی د الله شکر ادا کړي، خو څوک چې د تنفسي سېستم (respiratory system) په اړه د نویو معلوماتو څخه خبرېږي، د هغه د شکر کولو جذبه په زرګونه ځله ډېرېږي. او په همدې ډول د دې تزکیه هم ډېره پراختیا مومي.

حقیقت دا دی چې علم د انسان د تزکیې چوکاټ (framework) غټوي. علم سره انسان ته د خپلې تزکیې په اضافه کې نوي اړخونه معلومیږي. علم د تزکیې لپاره د ملاتړ کوونکي (booster) مثال لري.

## د اختلال نه ځان وساتئ

په دې دنیا کې د کامیابۍ یو اصل دا دی – د یو کار د کولو لپاره بل کار پرېښودل. دا د انساني نفسیاتو یو ځانګړتیا ده چې انسان په یو وخت کې دوو شیانو ته یو شان توجه (focus) نشي ورکولی. هغه یو شي ته توجه ورکوي، نو د بل شي نه توجه اوړي. همدا اصل د تزکیې لپاره هم صحیح دی. څوک چې د ځان تزکیه کول غواړي، نو هغه باید د تزکیې سره نااړوند (irrelevant) شیان پرېږدي.

د تزکیې په لاره کې تر ټولو لوی خنډ اختلال (distraction) دی. د تزکیې غوښتونکي لپاره ضروري ده چې هغه تزکیه خپل یوازنۍ ستره موخه (supreme goal) وګڼي، هغه د اختلال نه ځان په پوره ډول لرې وساتي. د تزکیې لپاره تمرکز (concentration) ضروري ده. په چا کې چې د توجه کولو صلاحیت نه وي، هغه به په یقیني ډول د تزکیې نه محرومه وي.

د هر شي یو قیمت وي، د تزکیې هم یو قیمت دی. هغه قیمت دا

دې چې هر ډول اختلال څخه ځان لرې وساتې. د مثال په ډول کورني رسمونه، د دوستۍ کلتور، د خوراکونو او کالیو شوق، دولت او شهرت (fame) ته میلان، د ژوند تکلفاتو او داسې نور. داسې ټول شیان د تزکیې غوښتونکي لپاره د اختلال مثال لري. ځوک چې د ځان تزکیه کول غواړي، هغه باید د داسې ټولو شیانو څخه ځان وساتي.

تزکیه د انسان نه یو اعلی انسان جوړوي. تزکیه انسان د دې قابل جوړوي چې د فرشتو سره خبرې وکړي. تزکیه انسان د دې قابل جوړوي چې د خدای په ګاونډ کې واوسیږي.

د تزکیې نه بغیر انسان د وچې لښتې پشان دی، د تزکیې نه وروسته انسان یو شنه ونه جوړیږي. تزکیه د کوم پټ شي نوم نه دی، دا هماغه شی دی چې په نورو ټکو کې ورته د ایماني شعور ویښتیا ویل کیږي.

## تزکیه او عصري غوښتنې

د هره زمانې د سوچ یو طریقه وي. انسان یوه خبره هغه وخت مني چې کله د دې د سوچ مطابق وي. دې ته د ذهن رسیدل وایي. څرنګه چې په نورو معاملاتو کې د انساني ذهن رعایت کول ضروري دي، په همدې ډول په تزکیه کې هم ضروري دي.

لرغونې زمانه د دودیز فکر زمانه وه، خو اوسنۍ زمانه د ساینسي فکر زمانه ده. په اوسنۍ زمانه کې د خلکو تزکیه باید په داسې ډول سره وشي چې د هغوی سر پرې خلاص (address) شي.

د تزکیې اصل اوس هم هماغه دی چې په لرغونې زمانه کې و، البته

د دواړو تر منځ توپیر شته او هغه توپیر د خبرو او استدلال (reasoning) په طریقه کې دی. په لرغونې زمانه کې دودیزه طریقه اغېزمنه کېدای شوه، خو په اوسنۍ زمانه کې د اغېزمنې تزکیې لپاره ضروري ده چې د خبرو طریقه بدله شي. دا په هغه صورت کې ممکنه ده چې د اوسنۍ زمانې انسان د تزکیې پر اهمیت پوه شي او دا په خپل ژوند کې اختیار کړي.

د مثال په ډول په لرغونې زمانه کې د " نفس اصلاح" جمله استعمالېده. دا جمله په لرغونې زمانه کې د دودیز ذهن اغیزمن کولو لپاره کافي و، خو د دې زمانې انسان په دې حقیقت هغه وخت ښه پوهیږي. چې کله دا جمله بدل کړل شي او داسې وویل شي چې هر انسان د مختلفو اسبابو نه اغیزمن (conditioned mind) کیږي. د دې د اصلاح لپاره ضروري ده چې دا ورغول شي، د دې ذهن باید د دوهم ځل لپاره تشکیل کړل (re-engineering) شي او هغه د دې قابل کړل شي چې هغه څیزونه د خپل اصل حقیقت په اعتبار سره وګوري او د هغه په اړه ښه نظر ورکړي. د تزکیې دې طریقې ته د خلکو مخاطب کولو لپاره ضروري ده چې د مزکی (تزکیه کوونکی) مطالعه پراخه وي، هغه د لرغونو خبرو سره سره د نویو خبرو نه هم خبر وي. د دې نه پرته د نوي عصر انسان تزکیه په اغېزمنې طریقې سره نشي کېدای.

## د تزکیې شرط

تزکیه کومه هنري پوهه نه ده. هنري پوهه په جملو کې بیانېدلی شي، خو تزکیه د معرفت پوهه ده او د معرفت پوهه یوازې په جزئی

ډول بیانېدل ممکن دي، خو په پشپړ ډول نه. د تزکیې هره وینا او لیکنه اضافه غواړي، او دا اضافه یوازې هغه څوک کولی شي چې د تزکیې غوښتونکی وي.

د تزکیې د حاصلولو لپاره ضروري ده چې د تزکیې غوښتونکی د تزکیې په اړه ډېر جدي وي، هغه د یو تیار ذهن (prepared mind) حیثیت ولري، هغه کې پوره امادګي وموندل شي، هغه د هر ډول تعصب (prejudice) نه تش وي، هغه یو غیر پیچلی انسان (complex-free) وي، هغه شیانو ته په داسې نظر کتلو صلاحیت ولري، لکه څنګه چې په حقیقت کې وي، هغه د ذاتي میلان نه پرته شیان وکتلای شي، هغه د ځان خلاف خبرې داسې واوري، څنګه چې د ځان موافقې خبرې اوري، هغه د کوم شرط نه پرته د حق قبلولو ته تیار وي، هغه په ښکاره ډول د خپلو غلطیو منلو مزاج ولري، هغه د صحیح زاویې د نظر نه (right angle vision) شیانو ته وګوري او داسې نور.

د تزکیې په کار کې دوه کسان برخه اخلي - د تزکیې ښوونکی او د تزکیې غوښتونکی. په دې کې د دواړو ونډه سل په سلو کې نه دی، بلکې پنځوس په پنځوسو کې دی. د تزکیې د ښوونکي ونډه دا دی چې تزکیه په حقیقي توګه وپېژني، هغه د قرآنکریم او حدیثو ژورې مطالعې پواسطه تزکیه په ښه ډول وپېژني او بیا په خالص ډول یې بیان کړای شي.

په دې کار کې د تزکیې غوښتونکي هم نیمایي ونډه دی. د تزکیې غوښتونکی باید د قبلولو مزاج ولري، هغه د خپل اشنا ذهن نه

راووځي او د تزکیې وینا واوري او ځان پرې پوه کړي، هغه د مخکې نه قایم شوي معیار نه آزاد وي، هغه کی دا صلاحیت وی چی د وینا په نسبت خپل رای قایم کړی نه د متکلم په نسبت. په چا کې چې دا صفات وي، هغه د تزکیې په حاصلولو کې کامیابیږي.

## د حقیقت اعتراف

اعلی انسانیت دا دی چې انسان د حق اعتراف وکړي او همدغه د یو انسان لپاره اصل خبره ده. اعتراف (acknowledgement) د حق د کشفولو (discovery of reality) نتیجه ده. که چیری انسان د حق نه بې خبر وي، په جاهلانو (ignorant) کې شمیرل کیږي. د حق د خبرېدلو نه وروسته که چیری انسان حق احساسوي، خو په خوله یې اعتراف نه کوي، نو دغه طریقه د منافقت طریقه ده. او که چیری داسې وي چې د حق نه د خبرېدلو نه وروسته حق حقدار ته منسوبولو پر ځای بل چا ته یا خپل ځان ته منسوب کړي، نو دغه انسان په دروغو ولاړ (falsehood) دی.

دا کوم ساده عمل نه دی. دا په صحیح لور باندې د انساني شخصیت پراختیا ده او د دې عمل دوهم نوم تزکیه ده. تزکیه د دې وینښتیا نتیجه ده چې انسان هر څه خدای سره وتړي، هره تجربه د دې لپاره خدای ته د نزدې کېدلو سبب وګرځي. د همدې تجربو په دوران کې د هغه نه یو اعلی شخصیت جوړیږي چې مزکی شخصیت (purified personality) ورته ویل کیږي.

په اصل کې ټول کار په صحیح منسوبولو (right attribution) او غلط منسوبولو (wrong attribution) کې دی. پېښې په غلط ډول

چا ته منسوبول، خپل روح ککړول دي، او د تزکیې په وخت کې ځان د تزکیې نه محروموول دي.
د دې برعکس کله چې انسان پېښې حقیقي خالق ته منسوب کړي، هغه خپل روح پورته کړ او د تزکیې د حاصلولو په وخت کې یې تزکیه حاصله کړه. تزکیه په کومه فضا کې نه وي، بلکې تل په حقیقي ژوند کې وي. د تزکیې لپاره ویښ ذهن (awakened mind) پکار دی، نه په یوازېتوب کی د کوم پټ اعمال.

## تزکیه او قرباني

د تزکیې حاصلول کوم اسان کار نه دی. د تزکیې د حاصلولو لپاره تل یوه قرباني پکار وي، هغه جسماني قرباني نه، بلکې نفسیاتي قرباني ده. هغه قرباني دا ده – چې د تزکیې د حاصلولو لپاره د تزکیې خلاف خبرې پرېښودل دی. دا د فطرت یو اصل دی چې د یو څیز د حاصلولو لپاره بل څه د لاسه ځي. دا اصل په تزکیه کې هم دومره مهم دی، څومره چې په نورو کارونو کې دی.
په دې کې یو بل کار د ناوړه عادتونو (bad habits) پرېښودل دي. هر انسان او ښځه د خپل چاپېریال په اثر داسې کارونو سره عادي کېږي چې د تزکیې په حاصلولو کې خنډ جوړېږي. د تزکیې غوښتونکی ته لازم دی چې دا عادتونه په پوره ډول پرېږدي.
د مثال په ډول ډېر ویل او لږ فکر کول، په کورني غوښتنو کې مشغولېدل، د خوراکونو او جامو شوق لرل، په تفریحي مجلسونو کې کېناستل، د نورو عیبونه خلکو ته ویل، سوداګانې او چکرې، فضول خرچي، سطحي او نمایشي مینه، په نیوکه خپه کېدل او په ستاینه

خوشحالېدل، د دنیا حریص کېدل، په ضرورت باندې قناعت نه کول، د ساده توب (simplicity) پر ځای باندې تکلف خوښول او داسې نور.

د هر شي یو قیمت وي. تزکیه هم خپل قیمت لري. هغه قیمت دا دی – چی د تزکیې خلاف خبرې پرېښودل. کوم انسان چې د تزکیې خبرې کوي او هغه د تزکیې خلاف خبرو پرېښودلو ته تیار نه وي، هغه بې له شکه یو غیر جدي انسان دی او د غیر جدي مزاج سره تزکیه نه جمع کیږي.

حقیقت دا دی چې کوم انسان د تزکیې غوښتونکی وي، هغه په خپله پوهیږي چې کوم کار د تزکیې لپاره موافق او کوم کار د تزکیې خلاف دی. د دې دا جدیت هغه په دی مجبوروي چې د تزکیې موافقې خبرې خپلې کړي او د تزکیې خلاف خبرې پرېږدي. جدیت د دې خبرې ضمانت دی چې انسان به خامخا د تزکیې درجې ته رسیږي، هیڅکله به هم د تزکیې څخه نه محرومیږي.

## تزکیه یو نفسیاتي عمل

تزکیه په ژبني تکرار او یا کوم جسماني ورزش سره نه شي حاصلیدای. تزکیه په پوره معنا یو نفسیاتي عمل دی او د نفسیاتو په سطحه حاصلېدای شي.

د نفسیاتي عمل نه مراد ذهني عمل دی. د انسان ذهن د هر ډول فکر مرکز دی. ذهن د انسان شخصیت جوړوي. همدغه ذهن دی چې د یو شخصیت نه مزکی شخصیت جوړوي او د بل شخصیت نه غیر مزکی شخصیت.

د تزکيې لپاره ذهني پراختيا ضروري ده، يعنې شعور ته دومره پراختيا ورکول چې هغه شيان تنظيم او تفکيک (sort-out) وکړای شي، هغه منفي جذبه په مثبت جذبه بان‌دی بدلولای شي، هغه په شيانو کې خالق مشاهده وکړای شي، هغه په مادي پېښو کې روحاني اړخ پيدا وکړای شي، هغه د خارجي اثراتو نه محفوظه فکر وکړای شي، هغه شيطاني زينت وپېژني او هغه رد وکړای شي، هغه د نفسياتي لمسونو څخه اوچت فکر وکړای شي، هغه ته د راتلونکي ليدلو نظر حاصل شی، هغه د بې نتيجې کار نه ځان وساتي، هغه خپل حقيقي خيرخواه وپېژندلای شي، هغه نصيحت قبلونکی وي، که د ځان خلاف يې ولې نه وي، هغه د ځان په خلاف د فکر کولو صلاحيت ولري، هغه د مادياتو نه لرې په روحانياتو کې نظر وي، د هغه فکر آخرت اړخيز فکر وي، او داسې نور.

دا ټول کارونه د نفسياتو په سطحه سرته رسيږي، دا د انسان د ژور فکر سره اړيکه لري. په چا کې چې ژور فکر نه وي، هغه د تزکيې اوچتې درجې ته نشي رسېدلی. په چا کې چې ژور فکر وي، په هغه کې د تزکيې عمل جاري کيږي. تزکيه په اصل کې د نفسياتي تزکيې دوهم نوم دی. تزکيه لمړی د نفسياتو په سطحه وي او بيا دا ممکن کيږي چې د انسان د ټول وجود په سطحه ښکاره شي.

## د مثبت نفسياتو اهميت

څلور زره کاله وړاندې حضرت ابراهيم (ع) خپله مېرمن بي بي هاجره او زوی اسماعيل (ع) د عربو په صحرا کې مېشت کړل او په خپله بېرته شام ته ستون شو. وروسته چې اسماعيل (ع) زلمی شو، نو د

جرهم د قبيلې يوې ښځې سره يې نکاح وکړه. څه وخت وروسته اسماعيل (ع) بېرته هلته راغی او د اسماعيل (ع) د مېرمنې سره يې وکتل. هغې ورته د سختو حالاتو شکايت وکړ. ابراهيم (ع) ورته په تلو کې وويل چې کله اسماعيل (ع) راشي، نو زما دا پيغام ورته ورسوه: غير عتبة بابك (د خپل کور درشل دې بدل کړه). له دې وروسته اسماعيل (ع) خپلې مېرمنې ته طلاق ورکړ او يوې بلې ښځې سره يې نکاح وکړه. څه وخت وروسته ابراهيم (ع) بيا هلته راغی او د اسماعيل (ع) د بلې مېرمنې سره يې وکتل. دوهمې مېرمنې سره په کتنه کې نوموړې هيڅ شکايت ونه کړ او په حالاتو يې شکر ووېسته. د دې خبرې په اورېدلو سره ابراهيم (ع) ورته وويل چې کله اسماعيل (ع) راشي، نو زما دا پيغام ورته ورسوه: ثبت عتبة بابك (د کور درشل دې وساته).

صحيح البخاری، کتاب احاديث الانبياء.

حضرت ابراهيم (ع) خپل اولاد په صحرا کې مېشت کړ. د دې مقصد دا و چې په ساده فطري چاپېريال کې نوی نسل پېدا شي، د توحيد ميسيون پورته کړي او په نړۍ کې يې خپور کړي. د ابراهيم (ع) د ذکر شوې پېښې نه معلومېږي چې د يو غټ کار لپاره داسې خلک پکار دي چې د مثبتو نفسياتو لرونکي وي، هغوی د شکايتي نفسياتو نه په پوره ډول تش وي، د دې نه معلومېږي چې د تزکيې په عمل کې ټولو نه مهمه خبره دا ده چې انسان خپل ځان غير شکايتي جوړ کړي، د شکايت د اسبابو په شتون کې دا په پوره ډول يو مثبت فکر لرونکی انسان جوړ شي.

منفي فکر د تزکیې قاتل دی، خو مثبت فکر د تزکیې مهم شرط دی. منفي فکر کوونکی انسان د شیطان موضوع ((subject)) جوړیږي. د دې برعکس مثبت فکر لرونکی انس‌ان د فرشتو په صحبت کی ژوند کوي. او دا یو حقیقت دی چې د تزکیې حاصلول د فرشتو د مرستې نه پرته ممکن نه دي.

## د تزکیې اصل محاسبه

د حضرت عمر فاروق (رض) یو وینا ده: حاسبوا أنفسکم قبل أن تحاسبوا (مسند الفاروق ٦٢٨/ ٢) یعنې خپله محاسبه وکړئ له دې وړاندې چې تاسو سره محاسبه وکړای شي. همدغه محاسبه د تزکیې اصل دی. تزکیه د کوم تربیتي کمپ پواسطه نه کیږي، تزکیه درس او تدریس سره هم نه کیږي، تزکیه د کوم عملونو او کارونو سره هم نه کیږي، بلکې د تزکیې یوازینۍ ذریعه محاسبه ده، یعنې خپل ځان سره حساب (introspection) کول، خپله د خپل ځان کتونکې جوړېدل او د خپل ځان په اړه فکر کولو سره د ځان اصلاح کیږی.

انسان یوازینی مخلوق دی چې د فکر کولو صلاحیت لري. د انسان تعریف داسې کیږي چې یو تصوري فکر (concept thought) لرونکی حیوان دی. تاسو لرګي تراشلی شئ، اوسپنه ویلې کولی شئ، خو انسان د خپل ځان په خپله مالک دی. هغه خپل ځان په خپله جوړوي. که چیری انسان په خپله ونه غواړي بل څوک د دې شخصیت نه شي جوړولی.

همدغه وجه ده چې د انسان تزکیه یا د هغه شخصیت جوړونه ټول ذاتي محاسبې کې دي. د مرشد یا مزکی کار صرف دا دی چې په

انسان کی د ذاتي محاسبې قوت محرک (incentive) کړي، هغه په انسان کې دا فکر پیدا کړي که چیری د ځان تزکیه ونه کړم، نو هلاک به شم، که چیری ما د ځان اصلاح ونه کړه، نو د دې نتیجه به دا وي چې زه به د تل لپاره برباد شم. زه به د ځان تزکیه په خپله کوم او څه چې باید کول وی هغه باید همدا نن وکړم، ځکه چې سبا کله هم نه راځي.

د انسان مزاج دا دی چې د هرې غلطۍ جواز (justification) لټوي، دې ته تل د ځان صحیح ثابتولو لپاره جملې پیدا کوي. د تزکیې لپاره انسان باید دا مزاج په پوره ډول ختم کړي. خو د دی مزاج د ختمولو اختیار یوازی د انسان په لاس کی دي، دا د بل چا په اختیار کې نشته.

## څنګه محاسبه

د تزکیې اصل ذریعه ذاتي محاسبه (self thinking) ده، یعنې د ځان په اړه فکر کول، خپلې خبرې او عمل تجزیه (analyse) کول، په بل عبارت کی محاسبه دا ده چې انسان د خپل ځان قاضي جوړ شي، هغه د خپل ځان په خلاف فکر وکړی او د ځان په خلاف نظر ورکړي. د همدې کار نوم محاسبه یا احتساب دی. او د دې ډول محاسبې نه پرته تزکیه ممکنه نه ده.

په انسان کې د ټولو نه قوي جذبه د نفس (ego) جذبه ده. دا جذبه دومره قوي ده چې انسان په شعوري ډول یا غیر شعوري ډول أنا ولا غیری (یوازې زه، زما نه پرته بل څوک نه) په نفسیات کی ژوند کوي. همدغه وجه ده چې انسان یوازې د ځان په اړه د فکر کولو ( self thinking) نفسیات پیدا کوي. یعنې د ځان خوښۍ په نفسیات

کی. دغه ډول نفسیات د تزکیې وژونکي دي. صحیح دا ده چې انسان د ځان په خلاف د فکر کولو (anti-self thinking) نفسیات پیدا کړي. هغه د خپل ځان په خلاف فکر وکړای شي او د ځان په خلاف خبرې واورېدلای شي. په عمر ابن الخطاب (رض) کې دا جذبه دومره شدیده وه چې هغه به وویل - خدای دې په هغه انسان رحم وکړي چې ما ته زما عیب را په ګوته کوي. (رحم اللّٰه امرءاً أهدی الی عیوبی)

د محاسبې دغه مزاج یو انکشاف سره پیدا کیږي او دغه انکشاف د خپل عاجزي (helplessness) موندل دي. د تزکیې غوښتونکی باید د انکشاف په درجه کې دا حقیقت وپېژني چې د دې په احساس کې (sense of I) یوازې د احساس حده پورې محدود دی. د خپل احساس نه دباندې بل هیڅ شی په دې اختیار نه لري - د خپل ځان د بقا لپاره دې ته هیڅ اختیار نشته، د مرګ نه د ژغورل کېدو اختیار دې ته نشته، د ژوند د ملاتړ سېستم (life support system) باندې دې ته هیڅ اختیار نشته، د آخرت په عدالت کې دې ته هیڅ اختیار نشته او داسې نور.

کله چې انسان خپله پوره بې اختیاري کشف کړي، نو په هغه کې خامخا د عجز جذبه پیدا کیږي. او همدا د عجز احساس انسان دې ته مجبوروي چې د ځان محاسبه وکړي - په همدغه انکشاف کې د تزکیې راز پټ دی.

## پرچه راوېستل

د تزکیې ریښتنې غوښتونکي سره ډیر داسې کیږي چې د خدای له

طرفه ورته خوب ورښودل کیږي. په دې خوب کې دې ته په ښکاره ډول لارښوونه کیږي چې وړاندې څه کول پکار دي. همدارنګه د تزکیې غوښتونکي ته د انتخاب (choice) موقع ورکول کیږي. د تزکیې غوښتونکي ته داسې خوبونه راتلل داسې ځانګړې مهرباني ده لګه څنګه چې یو زده کوونکي ته د آزموینې څخه وړاندې د ازموینې پوښتنې ورښودل کیږي. څوک چې د تزکیې غوښتنوکی وي د هغه مخې ته مختلفې پوښتنې راځي. هغه به په دوو کې یو انتخابوي. که د تزکیې غوښتونکی په دغو موقعو کې د خدای نه دعا وکړي، نو ممکن ده چی خدای د دې دعا قبوله کړي او دې ته خدای داسی یو خوب وروښيي چې په هغه کې د ده لپاره لارښوونه وي. او دا به د شک نه وباسي او یقین طرف ته بوځي.

دغه ډول خوب بې له شکه د خدای ځانګړی رحمت دی، خو که چیری څوک د خوب لیدلو نه پس بیا هم لارښوونه حاصله نه کړای شي، نو د دې مثال داسې دی چی یو زده کوونکي ته د ازموینې پرچه وروښودل شي او بیا هم ناکام شي.

په تزکیه کې پنځوس سلنه د بنده ونډه او پنځوس سلنه د خدای ونډه وی. د تزکیې غوښتونکی باید په مسلسل ډول د خدای نه دعا وکړي. دغه دعا د خدای سره د نزدې کېدو وسیله جوړیږي. هغه په خپلو معاملو کې د خدای سره د مشورې لپاره استخاره وکړي. استخاره کول ګویا په معاملاتو کې د خدای سره مشوره (counseling) کول دي، او خدای سره مشوره کوونکی کله هم نه بې لارې کیږي.

که چېرې خدای چا ته خوب وروښيي، نو په دې پوهېدل پکار دي چې خدای دې ته د ازموینې پوښتنې یې ورښودلې دي، اوس دې لپاره د دې نه بل کوم ښه انتخاب نشته. چا ته چې خدای تر دې حده پورې لارښوونه وکړې او هغه بیا هم دا لارښوونه نه قبلوي، نو دا د هغه لپاره یو غیر معاف کېدونکی جرم دی. خدای د دې انسان هیڅ کوم عذر (excuse) نه قبلوي او هغه به د تل لپاره د خپل قربت نه محروم کړي.

## تزکیه او دنیا پرېښودل

په وروسته زمانه کې ځینې خلکو د تزکیې لپاره د دنیا پرېښودلو طریقه اختیار کړل، د تزکیې لپاره په نفسیاتي معنا د دنیا نه بې رغبته کېدل مطلوب دي، خو دا چې په عملی معنا دنیا پرېښودل مطلوب ندی. د دنیا پرېښودلو نظریه په حقیقت کښې د غیرداعیانه ذهن حاصل دی. په دنیا کې انسان هم شامل دی، نو ځکه د دنیا پرېښودل د انسان پرېښودل دی.

داعي دا زغملی نشي چې د کوم عذر لپاره انسان پریږدي. نور خلک انسان له بل نظر نه ګوري، خو داعي انسان ته یوازې د مدعو له نظر نه ګوري. د داعي په نظر کې هر یو انسان مدعو وی، که غریب وي که شتمن، که عام وي که خاص، که حاکم وي که غیر حاکم، تر دې چې په ظاهره مخالف او ظالم دې ولې نه وي، د داعي له نظره هر انسان یوازې انسان دی. د داعي تر ټولو لمړی خواهش دا وي چې هر انسان ته ریښتنې پیغام ورسوي.

داعي دا نشي ویلی که چیری فلانی انسان له یوې دروازې څخه

راشې نو زه به د بلی دروازه څخه ووځم. هغه به دا وايي چې دا انسان زما مدعو دی، زه مخې ته ورځم او حکمت سره رېښتنې پیغام ورته رسوم.

د دنیا پرېښودل په عملي ډول د مدعو پرېښودل دي. د دنیا پرېښودل په حقیقت کی د داسې خلکو نه لرې کېدل دي چې د داعي لپاره د مدعو حیثیت لري. یو تاجر هر څه پرېښودلی شي، خو هغه خپل ګاک (customer) پرېښودلی نشي. همدارنګه داعي هر څه زغملی شي، خو دا نشي زغملی چې مدعو پرېږدي او کوم ګوښه ځای ته لاړ شي. که چیری د مدعو په منځ کې اوسيږي او ده ته کوم مصیبت رسيږي، که چیری د ده په لمنه باندی ختته ولګيږی، نو دی به بیا هم هغه ختته پریږدي، خو د مدعو سره اړیکه نشي پریکولی.

څرنګه چې د یو مومن لپاره تزکیه ضروري ده، همدارنګه دعوت هم ضروري دی. او یو ریښتنې مومن ته ممکنه نه دی چې هغه تزکیه یا دعوت پرېږدي.

## د تزکیې خوځښت

که چېرې دا وویل شي چې د اسلام هدف (goal) صالح نظام قایمول دي، نو د دې صالح نظام لپاره صالح خلک پکاردي. د تزکیې هدف دا دی چې داسې صالح خلک تربیه کړي چې صالح نظام قایم کړای شي. دا خبره په ویلو بې ضرره ښکاري، خو د تزکیې په پروسه کې د وژونکي حیثیت لري. دغه ډول تصور د اسلام له نظره کله هم مؤثر جاري کېدای نشي.

د امتحان په دې دنیا کې انسان داسې حالاتو سره پیښ کیږی چې

د تزکیې په خلاف هر طرف ته ډېر اسباب موجود وي. په داسې حالت کې د تزکیې د عمل لپاره ډېر قوي خوځښت ( strong incentive) پکار دی. او قوي خوځښت هغه کېدای شي چې ټوله توجه په خپل ذات باندې وي، نه په خارجي نظام باندې.

د ریښتنې تزکیې لپاره دا ضروري ده چې انسان دا محسوس کړي چې هغه د تزکیې نه پرته هیڅ کله کامیابې لاسته راوړې نشي. د تزکیې د نه کولو په صورت کې به د دې لپاره ابدي محرومۍ نه پرته بل څه نه وي. د دې ډول قوي خوځښت نه پرته هیڅ کوم انسان په تزکیې باندی ولاړ پاتی کیدای نشي د رېښتونې تزکیې لپاره شدیده محاسبه پکار ده او شدیده محاسبه د کوم خارجي نظام د نسبت سره نه پیدا کیږي.

که ما د ځان تزکیه ونه کړه، نو زه به هلاک شم - دغه ډول ژور خوځښت په چا کې صرف هغه وخت پیدا کیږي کله چې تزکیه د دې لپاره یو ذاتي مسئله وي، نه کوم خارجي غرض یا کوم لرې ضرورت. نظام یو خارجي شی دی چې د ټولنې سره تعلق لري. دغه ډول حواله په انسان کې د قوي خوځښت په حیث نشي داخلېدی. حقیقت دا دی چې تزکیه د خپل ځان په حوالې سره په ژوند کې داخلیږي، نه د کوم خارجي نظام په حوالې سره.

## تزکیه د تیارۍ عمل

په نننۍ مادي دنیا کې هر انسان ته د روزګار ضرورت دی. هر انسان غواړي چې ښه وظیفه (job) ولري. نو د دی لپاره هر انسان خپل ځان د بازار د غوښتنیې په مطابق د ځان څخه یو مسلکي او تیار

انسان (professionally prepared person) جوړوي. څوک چې ځان داسې تیار ونکړای شی، هغه ټول عمر یو ناکام انسان وي.
دا معامله په شدید انداز کی د آخرت د دنیا هم دی. د آخرت دنیا د ډېر اعلی قسم رباني کارونو دنیا ده. د آخرت په دنیا کی به هغه کس کامیاب وی چی په دی دنیا کی د آخرت په مطابق تیاري وکړي، او په اوسنۍ دنیا کی خپل ځان په روحانی اعتبار سره یو تیار انسان (spiritually prepared person) جوړ کړي. څوک چې په دی دنیا کې د آخرت لپاره ځان داسې تیار ونکړای شي، هغه به په آخرت کې یو ناکام انسان وي.
دا ټول معاملې د لیاقت (competence) معاملې دي. یو ډول لیاقت په دنیا کی پکاریږي او بل ډول لیاقت په آخرت کی ـــ په دنیا کښی په ظاهري ډول شرک پکاریږي، خو په آخرت کښی توحید پکاریږي. په دنیا کښی ځان ته اهمیت (concern) ورکول پکاریږي، خو په آخرت کښی خدای ته اهمیت ورکول پکاریږي. په دنیا کی شیانو ته د مادي زاویي (material angle) نه کتل پکاریږي، خو په آخرت کښی شیانو ته د روحي زاویي نه کتل پکاریږي. په دنیا کی مفاد پرستي پکاریږي، خو په آخرت کی به هغه کس کامیاب وی چی ځان اصول خوښونکی ثابت کړي. په دنیا کی په ظاهري ډول بې ایماني (dishonesty) پکاریږي، خو په آخرت کی ایمانداري (honesty) پکاریږي. دنیا کې د عاجلې مینې (immediate interest) مزاج پکاریږي، خو په آخرت کې هغه انسان کامیابیږي چې ژوند یې د آخرت د مینې پر بنسټ تعمیر کړی وي.

د تزکیې هدف خپل ځان د آخرت له اعتباره تیارول دي، یعنې په ځان کې داسې صفتونه پیدا کول چې د مرګ نه وروسته پکاریږي.

## د تزکیې توکي پیدا کول

د تزکیې وسیله د خپل فکر ویښول دي. د دې یو صورت دا دی چې خپلې هغه پېښې رایادې کړې چې ته په یو مصیبت کې راګیر شوی وې، خو الله تعالی په خپل ځانګړی مرسته ته له هغه مصیبته ژغورلې وې. داسې حادثې او پېښې د هر چا په ژوند کې وي، خو څه وخت پس انسان دغه پېښې هېروي.

د تزکیې غوښتونکی باید بیا بیا داسې فکر وکړي او هغه پېښې په خپل ذهن کې تازه کړي چې زه د تباهۍ په غاړه وم، خو الله تعالی په خپله ځانګړی مرسته وژغورلم. هغه باید دا پېښې په ډېر شدت سره یادې کړي او بیا ووایي چې خدایه تا زه د دنیا په ژوند کښې د سختو مشکلاتو څخه وژغورلم، همداسې ما په آخرت کې د جهنم له اوره وژغوره.

همدارنګه د دې معاملې یو بل صورت دا دی چې انسان خپل ګناهونه یاد کړي او په خپل ځان کی د ملامتیا جذبه ویښ کړي. که چیری تاسو په یو پېښه کې ۹۹ فیصده ریښتنې یاست، او یوازې ۱ فیصده ملامته یاست، نو په داسی حالت کی ۹۹ فیصده هېره کړې او خپله ۱ فیصده ملامتیا دومره ډېره کړې چې تاسو دا محسوس کړې چې ټوله غلطي زمونږ وو. په همدې توګه په تاسو کښی د ملامتیا جذبه ویښیږي. تاسو به د خدای له وېرې لړزیږې او تاسو به خدای ته رجوع وکړې او توبه به وباسې.

تزکیه کوم پټ شی نه دی، بلکې تزکیه یو معلومه پراسس ده، او هغه بیا بیا د تزکیې اړوندو کارونو باندې فکر کول دي. تزکیه تل د شعوري ویښتیا نتیجه وي، نه د کوم پټ اعجاز نتیجه. څوک چې څومره ډیر د دې په اړه فکر کوي، هغومره ډېره به د هغه تزکیه کیږي. تزکیه په پوره معنا باندې یو شعوري عمل دی. د دې شعوري عمل نه پرته د تزکیې د حاصلولو امید ساتل صرف خوش خیالي (wishful thinking) ده چې کله به هم حقیقي بڼه ونه ومومي.

## تزکیه د نزدیوالي ذریعه

انسان مخلوق دی او الله د دې خالق. ځکه د انسان فطرت غواړي چې خپل خالق ته نزدې وي، خو مختلف څیزونه انسان د خدای نه لرې کوي. د بېلگې په توگه ویاړ، منفي فکر او داسې نور. د تزکیې هدف دا دی چې انسان د دې ډول منفي احساساتو څخه په پوره ډول پاک شي. څنگه چې انسان د دې ډول منفي احساساتو نه ځان پاکوي، نو ناڅاپه دې ته محسوسیږي چې خپل خالق ته نزدې شوی دی. هغه هر لوري ته د خدای شتونوالی (presence of god) تجربه کوي.

خدای ته ژور نزدی والې هغه وخت کېدای شي، چې کله انسان خدای په لوړو صفتونو سره وپېژني. د بېلگې په توگه هر انسان د ژوند کولو لپاره ډېر څیزونو ته اړتیا لري. دا څیزونه دی په خپله نه دي پیدا کړي، د دې څیزونو یو پیدا کوونکی شته او بې له شکه هغه الله دی. خدای هغه هستي ده چې د هر څیز ورکونکی (giver) دی. دا بې له شکه د خدای یو طرفه نعمتونه دی چې د دې پواسطه د هغه په دی دنیا کی ژوند روان دی. که د یوې شیبې لپاره دا نعمتونه

ودرول شي، نو په دنیا کې به ژوند ختم شي.
کوم انسان چې خدای د ورکونکی په حیثیت وپېژني، نو په فطري ډول د دې په روح کې به د خدای د مینې چینه پیدا شي. دا د هغه حقیقت عکس جوړوي چې په قرآنکریم کې: ولذین آمنوا أشد حبا للّٰه (۱٦۵ :۲) په ټکو کې بیان شوي دي. په قرآنکریم کې د قربت (نزدیوالي) سجدې (۱۹ :۹٦) ذکر شوی دی. د قربت سجده څه ده. د قربت سجده په اصل کې د انسان سجده ده چې د خپل رب لپاره د مینې او وېرې نه ډک وی او د دې مینې او وېرې په نتیجه کې هغه د خپل رب مخې ته په سجده پریوزي – دغه ډول سجده د یو مؤمن لپاره د تزکیې معراج دی.

## تزکیه او د مرگ یادول

د تزکیې د عمل لپاره د مرگ یادول ډېره قوي ذریعه ده. د مرگ یادول د چټکتیا احساس (sense of urgency) پیدا کوي. مرگ انسان ته دا یادوي چې د تزکیې عمل باید ونه ځنډول شي، د تزکیې عمل باید همدا نن وشي، ځکه سبا دا معلومه نه ده چې ته به ژوندی یې او که مړ.
د مرگ تصور انسان ته دا وریادوي چې مرگ هر کله راتلای شي. لدې وروسته به ته د هغه سنگین حالت سره مخ کېږې چې په قرآنکریم کې په دې ټکو کې بیان شوی دی: یوم یقوم الناس لرب العالمین (٦ :۸۳) یعنې انسان به د کایناتو د څښتن مخې ته ودرول شي. دا به هغه ورځ وي چې فرشتې به انسان د خدای مخې ته حاضر کړي، هغه خدای ته چې د هر پټ او څرگند نه خبر وی هغه

به د انسان د اقوالو او اعمالو حساب واخلي. د یو حدیث مطابق، انسان به تر هغه د خپل ځایه ونه ښوریږي تر څو یې چې د الله پوښتنو ته ځوابونه نه وي ورکړي (لا تزول قد ما عبد یوم القیامة حتی یسأل عن أربع).

د مرګ د یادولو مطلب د خپل ژوند نازکه شیبه یادول دي. د هغه راتلونکي وخت په اړه فکر وکړي چې په ده باندې راتلونکی دی. په هغه ورځ به د دی د ابدي راتلونکي (eternal future) په اړه پریکړه وکړل شي.

دغه فکر بې له شکه داسې فکر دی چې په انسان کې زلزله پیدا کوي. دا یو داسی حقیقت دی چې څوک د مرګ په اړه داسې فکر کوي، هغه به د خپلې تزکیې په اړه ډیر زیاد فکرمند وي، هغه به پوره هڅه کوي چې د هر اړخ نه د خپل ځان تزکیه وکړي، له دې نه مخکی چی هغه ته مرګ راشي او د خپل اصلاح لپاره ورسره وخت نه وي.

## د تزکیې هدف

د قرآنکریم په الزمر سورت کې د جنتیانو په اړه داسې ویل شوي دي: "او هغه خلک چې د خپل رب نه ویریدل، هغوی به ډلې ډلې د جنت په لور روان کړل شي، کله چې هغې خواته ورسیږي، او د جنت دروازې پرانستلی شي او د جنت ساتونکي به ورته ووایي چې په تاسو دې سلام وي، خوشحاله اوسئ، پس په دی کښی د تل لپاره ورننوزئ. او هغوی به وایي چې د الله تعالی ډیر شکر دی چې موږ سره یې خپله ژمنه په ریښتیا سره پوره کړه او موږ یې د دې ځمکې

وارثان وګرځولو. په جنت کې چې چېرته وغواړو اوسیدلای شو. نو څومره ښه اجر دی د عمل کوونکو. او ته به فرشتې وینی چې د عرش نه چاپیره د خپل رب حمد او ثنا به وایې. او د خلکو په منځ کې په انصاف سره پریکړه وکړای شي او وبه ویل شي چې ټول صفتونه الله لره دي، چې د ټولو کایناتو رب دی. (٧٥- ٧٣ :٣٩)

د فاتحې په سورت کې د الحمد لله رب العالمین آیت د دنیا په نسبت سره راغلی دی. له دې نه دا معلومیږي چې د انسان نه چې کوم څیز مطلوب دی هغه د خدای حمد او ثنا مطلوب ده. دا څیز په دی دنیا کې هم مطلوب دی او په آخرت کې هم – د تزکیې اصل هدف دا دی چې داسې پاک روحونه (purified souls) تیار کړل شي چې په آخرت کې د حمد پر بنسټ د ژوند برخه شي.

په دی دنیا کې د انسان یو کار دا و چې تمدن (civilization) منځته راوړي. انسان دا کار په ډېره پیمانه تر سره کړ، د ډبرې زمانې ( stone age) نه یې شروع کړ او د برېښنا تر زمانې (electronic age) پورې یې راورسوه. دغه کار د فطرت د قانون په پېژندلو سره سرته ورسیده، خو انسان صحیح کار په غلط کار کې مخلوط کړ. د فطرت په قدرتونو باندی د برلاسه کېدلو نه وروسته هغه سرکشه شو، هغه استبدادي (زورواکۍ) نظام (despotic system) قایم کړ، هغه د ازادۍ په نوم خپل سري (anarchy) خپره کړه، هغه د فیشن په نوم بربنډتوب (untidy) ته رواج ورکړ او داسې نور.

همدې لپاره به په قیامت کې صالح خلک انتخابیږي چې په ښه ډول خدایي تمدن قایم کړي. دا هغه حقیقت دی چې د قرآنکریم په یو

آيت کې داسې بيان شوی دی: أن الارض يرثها عبادی الصالحون (٢٢: ١٠٥)

د انسان ژوند د معرفت يو سفر دی. دا سفر د دنيا نه تر آخرته جاري دی. په دنيا کې د معرفت سفر په محدود ډول سرته رسيږي، خو په آخرت کې د معرفت سفر په غير محدود ډول جاري وي. دغه سفر هغه څوک په کاميابۍ سره سرته رسولی شي چې د ځان د تزکيه کولو سره ځان د هغه ځای اهل جوړ کړي. په قرآنکريم کې ويل شوي دي که د زمکې په مخ باندی دا ټولی ونې قلمونه شي او د سمندر اوبه سياهي جوړه شي او دی سره اووه نور سمندرونو هم يو ځای شي بيا به هم د الله تعالی کلمې به خلاصې نشي (٢٧ :٣١)

دا خبره چی په قرآن کی شوی دی، دا خبر ندی بلکې انشاء دی، يعنې د دی مطلب دا دی چی مؤمنان بايد دغه جملې وپېژني او په همدی توګه دې خپل معرفت په دوامداره توګه زياتوی. د قرآن لومړې آيت دا دی: الحمد لله رب العالمين (١:١) دا آيت هم خبر نه دی، بلکې انشاء دی. دغه آيت د نړۍ د معرفت شروع بيانوي. په بل ځای کې د آخرت په اړه همدغه آيت داسې راغلی دی: و قيل الحمد لله رب العالمين (٣٩: ٧٥). دغه آيت د معرفت د پېژندلو بل پړاو دی چې د آخرت په ډېر ښه چاپېريال کې د تل لپاره جاري وي.

په يو حديث کې راغلي دي چې: أن الله ليؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر (صحيح البخاری) په دې حديث کې چې کوم ديني تايد ذکر شوی دی د دې غټه بېلګه غالباً د نولسمې او شلمې پيړيو د ساينسپوهانو عمل وي. هغوی د معرفت د حاصلولو لپاره يو ساينسي

چوکاټ جوړ کړ. په آخرت کې د معرفت سفر جاري کولو لپاره اهل ایمان ته به ډېره لوړه درجه تایید کوونکي ډله حاصل وي او هغه به فرشتې وي، څنګه چې په قرآنکریم کې راغلي دي: نحن أولیائکم فی الحیاة الدنیا و فی الاخرة (۴۱:۳۱)

## د تزکیې معیار

د تزکیې معیار (criterion) څه دی. د تزکیې معیار دا دی چې انسان اسلامي فکر او اسلامي عملونو سره دومره قوي اړیکه ولري چې دا د خپل زړه غږ محسوس کړای شي. او د خنډ نه پرته زر یې قبول کړی که چیری د هغه موافق وی یا دهغه مخالف.

د تزکې اصل هدف د الله سره اړیکه جوړول دي. دا بلکل سمه ده او په نورو ټکو کې داسې ویل کېدای شي چې د تزکیې پېژندنه دا ده چې د بنده یوازینی تعلق (sole concern) یو الله جوړ شي. د دې اصطلاحي نوم توحید دی، یعنې د شرک نه په پوره ډول پاکېدل او د ټولې توجه مرکز خدای جوړول.

خدای د خپل سوچ مرکز جوړول کوم ساده خبره نه ده. دا د انسان په ذات کې د پوره انقلاب په هم معنا ده. د داسې انسان حال دا وی چې خدای په پوره معنا ورکوونکی (giver) ګڼي، او خپل ځان اخستونکی (taker). د دې فکر خدای طرف ته وي او د احساساتو مرکز یې خدای وي. د دې په خبرو او کړنو کې د خدای رنګ ښکاریږي، په دې کې په بشپړه توګه عاجزي (modesty) پیدا کیږی او په هر حال کې موافق انسان (man cut to size) جوړیږي، نورو لپاره د ده په زړه کې د کرکې پر ځای خیرخواهي پیدا کیږي. د دې

پر ځای چې په نورو کې غلطي پیدا کړي، هغه په هر کار کې خپله غلطي لټوي. هغه د خبرو نه چوپتیا خوښوي، د مخکې څوکۍ حاصلولو پر ځای هغه وروستنۍ څوکۍ خوښوي، هغه د خبرو نه وړاندې دا فکر کوي چې زما خبره به د خدای په دربار کې قبوله کړای شي یا نه. او هغه په یوازېتوب کې هم دومره محتاط وي څومره چې د خلکو په منځ کې وي.